# د ماشومانو لپاره کيسې
# او بوختيا وې



ليکوال : عبد الغفور "ليوال"

# د ماشومانو لپاره کیسې
# او بوختیاوې







عبدالغفور «لیوال»

۱۳۸۱هـ ش/۲۰۰۲م

# کتاب پېژندنه

د کتاب نوم : د ماشومانو لپاره کیسې او بوختیاوې
لیکوال : عبدالغفور «لیوال»
د پښتې انځور : استاد عبدالحفیظ «آشنا»
د هنر او فرهنگ د سالون مسوول، پېښور، ۱۳۸۱
خپرونکی : د اریک د گرځنده کتابتونونو اداره
پرله پسې نومره : ۱۱۰
لومړی چاپ : ۱۳۸۱ هـ ش، د خپرونکي له خوا، پېښور
د مخونو شمېر : ۹٤
کچه : ۵, ۱۳ × ۲۱ سانتي متره
د خپرونکي پته : دویم کور، رحمان بابا روډ،
پوسټ بکس: ۱۰۸٤، یونیورسټي ټاون - پېښور
ټیلفون: ۸۵۰۸۳۹ - ۵۷۰٤۳۹۲ - ۵۷۰۲۹٦۲
۸٤۱۲۹٦ - ۵۷۰۲۵۳۱
فکس: ۸٤۰٤۷۱-۹۱-۰
الکترونیکي پوسټ: aric@brain.net.pk
کمپوز او طبع : احمد پرنټنگ پرېس، ټیلیفون ۲۱۵۵٤۰

د ویش او پلورنې ځای: د اکبر دفتر (د افغانانو له پاره د مرستو د انسجام اداره)




بسم الله الرحمن الرحيم

د اکبر د اطلاعاتي او نشراتي منابعو مرکز (اریک) له څلورو کالو راهیسې د افغانستان ولایتونو ته د گرځنده کتابتونونو پروگرام تر لاس لاندې نیولي دي. گرځنده کتابتونونه چې د فلزي صندوقونو په بڼه جوړ شوي دي، په یو خاص ځای کې اېښودل کېږي. د سیمې خلک ورڅخه امانت کتابونه وړي، لولي یې او خپلو شاوخوا خلکو ته یې هم اوروي. کله چې په سیمه کې د کتابتون ټول کتابونه ولوستل شول، کتابتون بلې سیمې ته لیږدول کېږي او یا پرې یوشمیر نور نوي کتابونه ورزیات او هماغه ځای کې پاتې کېږي.

مونږ دا هڅه کړې ده چې د گرځنده کتابتونونو له پاره داسې کتابونه راټول کړو چې دلیکنې ژبه یې ساده او د خلکو د اړتیاوړ مطالب ولري، تر څو چې په ورځني ژوند کې له هغوی سره په دیني، ټولنیزو، اقتصادي، ښوونیزو، روزنیزو، روغتیایي، تاریخي، فني، مسلکي او... مسایلو کې مرسته وکړي.

موږ د گرځنده کتابتونو تر څنگ دا سروې هم ترسره کوو چې خلک څه ډول آثارو او موادو ته اړتیا لري او د کومو موضوعاتو او مطالبو د مطالعې هیله من دي. موږ لومړی هڅه کوو چې غوښتل شوي کتابونه له بیلا بیلو منابعو (کتاب پلورنځیو او خپرونیزو مرکزونو) څخه برابر او راونیسو. په نوموړو مراجعو کې د مطالبو او موادو د نشتوالي په صورت کې اریک هڅه کوي چې دا اړتیاوړ آثارو په تألیف، ترجمه او چاپ سره دغه تشه ډکه کړي.

ددغه موخې او هدف د تحقق او په عمل کې پلي کولو په منظور درې کاله

لومړی

د مخه د لوستونکو د علاقې وړ کتابونو د چاپ او خپراوي کار پیل شو او له هغه وخت راهیسې تر اوسه پورې د اریک گرځنده کتابتونونو ادارې د محترمو همکارو مؤسسو په مرسته په دغه برخه کې پیاوړي گامونه اخیستي او گټور فعالیتونه یې ترسره کړي دي.

د ښه او سیستماتیک کار له پاره د اریک د ادارې استازیو او یو شمیر څېړونکو او لیکوالو یو گډ هیأت وټاکل شو چې د مطلوبو کتابونو د پلان کولو، آماده کولو او چاپ کولو پړاوونه چې د تکړه او مسلکي لیکوالو له خوا تألیف کیږي، په گډه پر مخ بوځي.

دغه هیأت د افغانانو د صمیمي همکارې میرمن نانسي هچ دوپري، سیدمحی الدین هاشمي، فیض محمد نایاب عطایی، محمد شکیب افضلي او محمد رفیع فاروق څخه تشکیل شوی دی.

مونږ له خپلو ټولو درنولو ستونکو څخه چې د هیواد په بیلا بیلو ښارونو او کلیوالو سیمو کې زموږ له کتابتونونو څخه گټه اخلي، هیله لرو چې خپلې اړتیاوې، غوښتنې او پوښتنې راولیږي او د هیواد له لیکوالو او پوهانو څخه غواړو چې چه له موږ سره په دې لاره کې مرستندوی شي، چې وکړای شو خپلو خلکو ته لا ښه او گټور کتابونه وړاندې کړو.

په درنښت

د اریک د گرځنده کتابتونونو اداره

# فهرست




# سریزه

ماشومان د ټولنې راتلونکي جوړونکي دي، د همدې لپاره د هرې ټولنې چارواکې او غړي چې د خپلو هیوادونو د نیکمرغه سبا په هکله فکر کوي او هیله یې دا وي، چې هیواد او ټولنه یې له نن څخه سبا ته ښه او آباد وي، نو د ماشومانو روزنې او پالنې ته ډیره پاملرنه کوي، په داسې ټولنو کې د ښوونځي، وړکتون، او مدرسو تر څنګ ماشومانو ته د لوبو او تفریح لپاره هم آسانتیاوې برابرېږي. په کورنۍ کې چې د ماشوم لومړنی روزنځای دی هم باید د ماشوم سالمې ودې ته پام وساتل شي، یعنې د لوست، لوبو او تفریح لپاره آسانتیاو لري.

ددې اړتیا له مخې، چې د ماشومانو لپاره بوختیاوې، لوبې او د تفریح وسایل څنګه پیژندلای شو او له بلې خوا ددې لپاره چې معلومه کړو کیسې، ترانې، لوبې او نورې بوختیاوې د ماشومانو په روزنه او سالمه وده کې څومره ونډه لري، دغه تر لاس لاندې کتاب خپروو.

په دې کتابګوټي کې به د ماشومانو لپاره د کیسو، افسانو پر پیژندلو بر سیره د ماشوم په وده کې د هغو په اهمیت خبرې وشي او بیا به د کوچنیانو لپاره د کیسو پخوانۍ او اوسنۍ بیلګې هم وړاندې شي، چې عملاً یې د جوړښت او ژبې څرنګوالي و پیژندل شي.

په دوهمه برخه کې د ماشومانو په ترانو او شعرونو بحث کیږي چې د

ماشومانو په ادبیاتو کې ځانګړی ځای لري او د دی تر څنګ چې د ښونې او روزنې لپاره ارزښت لري د ماشومانو د لوبو یوه برخه هم وي. دا برخه هم د ماشومانو لپاره یو شمیر ترانې او شعرونه له ځانه سره لري.

په دریمه برخه کې د ماشومانو په لوبو باندې خبرې شوې او د هغوی په جسمي وده کې یې ونډه څیړل شوې ده چې د څو لوبو په پیژندلو سره پای ته رسیږي.

نورې برخې د ماشومانو لپاره دځینو فولکلوري ارزښتونو په هکله دي چې په هغو کې اړونه چیستانونه، متلونه، توکې او نور شاملې دي.

په وروستۍ برخه کې به د ماشومانو لپاره د پوښتنو، جدولونو او علمي تجربو څوبیلګې معرفي شي او دا به وڅیړل شي چې د رسمي ښوونې او روزنې تر څنګ دادول بوختیاوې او لوبې د ماشوم په روز نیز بهیر کې څومره اغیزه لري.

دا کتاب ګوتې په دې هیله خپریږي، چې وشي کړای د افغاني ماشومانو لپاره د سرګرمیو، کیسو او ترانو په پیژندلو او بیلګه یې څیړنه کې مرسته وکړي.

ښایي دا یادونه هیره نه شي، چې د اریک د ګرځنده کتابتونو نو اداره د ستاینې او مننې وړ ده چې د داسی آثار و په خپراوي او تدوین یې لاس پورې کړی دی. داځکه د افغانستان د ماشومانو په سمه روزنه کې ځانګړی ځای لري.

او دا کتابونه راتلونکو نسلونو ته هم د ګټې اخیستنې وړتیا لري.

د افغاني ماشوما نو پر شونډو د تلپاتې موسکالیدو په هیله

عبدالغفور لیوال

لومړۍ برخه:

## کیسه څه ته وايي او څنګه رامنځ ته کيږي ؟

کیسې د تاریخ په اوږدو کې د خلکو د غوښتنو ، هیلو ، تجربو ، خیالونو او فکرونو هغه ویل شوې یا لیکل شوې څرګندونې دي چې نورو نسلونو ته په زړه پورې او له پندو خوند څخه ډکې وي.

په افغانستان کې کیسې ته (افسانه) ، (نکل) ، (قیصه) (داستان) او (حکایت) هم وايي. او ګڼ خلک معمولاً د ژمي له خوا په کلیو او ښارونو کې ، کله چې د تنرونو یا صندلۍ ګانو تر څنګه راټول شي ،نو د ژمي اوږدې شپې په خوږو کیسو لنډوي.

انا ګانې ، او نیکونه یا پلارو مور خپلو ماشومانو ته ښکلې کیسې اوروي او ماشومان د کیسو په اوریدو د کیسې په هکله فکر کوي ، ځان د کیسې د اتل پر ځای ګڼي او ورو ورو د خوب دنیا ته ځي.

کیسې زموږ په هیواد کې له ډېر پخوا څخه دود دي چې په لیکلو او شفاهي ادبیاتو کې ځانګړی ځای لري.

هره ټولنه ځانته بیلې بیلې کیسې لري چې د همغې ټولنې له دود و دستور ، ورځني ژوند او تاریخي اشخاصو سره مناسبت ولري. خویو شمیر کیسې داسې هم شته چې د نړۍ په ګنو و لسونو کې یو ډول دود دي.

کله چې په یوه ټولنه کې خلک د ښه ژوندون په تمه ورځې او شپې تیر وي

او غواړي له شر او بدیو څخه وژغورل شي، د ظلم او ناروا لاسونه ورڅخه لنډ شي، په سوله، مینه او خوشالۍ کې ژوند وکړي، نو د همدې لپاره سوچ او فکر کوي. په خپلو ذهنونو کې داسې اتلان رامنځ ته کوي چې کولای شي له شر او بدي سره جګړه وکړي، ظلم او ناروا له منځه یوسي. وروسته بیا همدغه اتلان او د هغوی ښه کارونه په افسانو کې رانغاړي او کیسې ورڅخه جوړوي، دا کیسې بیا نسل په نسل او سینه په سینه رالیږدیږي او کله کله ویونکو او راویانو له خوا لږ او ډیر بدلونونه هم په کې رامنځ ته کیږي.

ددې لپاره چې کیسې د اوریدونکو په تیره بیا ماشومانو لپاره په زړه پورې وي، او دوی وکولای شي ورڅخه خوند واخلي، نو د کیسو جوړونکي هڅه کوي په خپلو کیسو کې فوق العاده پیښې او حیرانونکي حوادث ځای کړي. مثلاً د کیسې اتلان ډیر زړور، ځواکمن او ښکلي وي، کله خو د جادوګر و، ښامارانو، دیوانو، پیریانو او ښاپیریو له خوا داسې کارونه تر سره کیږي چې اوریدونکی حیرانوي.. په کیسو کې دیوان، ظالمان او بد خلک هم وي، چې هغه بیا د پیښو په بهیر کی د کیسو د اتلانو په لاس له منځه ځي.

کله کله په کیسو کې حیوانات (څلوربول)، مرغان او نور ژوي خبرې کوي او د انسانانو په څیر کولای شي وغږیږي او فکروکړي، په ځینو نورو کیسو کې غرونه، ونې، سیندونه، ستوري، لمر او سپوږمۍ او ځینې نور څیزونه هم خبرې کوي چې دا د ماشومانو لپاره په زړه پورې وي.

دا چې ولې په کیسو کې داسې کیږي علت یې دادی چې انسانان په عادي ورځني ژوند کې نه شي کولای فوق العاده او حیرانوونکي کارونه

وکړي ، ځکه خو د خیال او فکر په مرسته په کیسو او نکلونو کې د خپلو زړونو غوښتنې او هیلې د حیرانوونکو پیښو په رامنځ ته کولو کې انځوروي.

## له تاریخي او فرهنګي پلوه د کیسو اهمیت:

کیسې ډیرې ګټې لري ، ماشومان د کیسو په اوریدو له خپل چاپیریال او نړۍ سره آشنا کیږي ، ښه او بد پیژني ، د فکرکولو ، تخیل او ذهني فعالیت ځواک یې ډیر یږي او کله کله خو تکړه ماشومان کولای شي په خپله هم کیسې جوړې کړي.

هغه ماشومان چې د کیسو له قهرمانانو سره مینه پیداکوي ، غواړي دوی هم د کیسو داتلانو په شان ، ښه ، هوښیار ، زړور او ځواکمن و اوسي ، له بدو او ناوړو کارونو څخه ځان وژغوري او نور هم سمې لارې ته راوبولي ، کیسې ماشومان له پخوانیوز مانو ، تاریخ او ټولنپوهنې سره آشنا کوي.

کیسې د یوه ولس ادبیاتو ، فولکلور ، تاریخي اسناد و او پیژندنې په بډا یینه کې هم ډیره ونډه لري.

وایي چې یونانیان دخپل زاړه تاریخ یوه لویه برخه د هغو کیسو له مخې پیژني چې د « هومر » له خوا جوړې شوي دي. « ایلیاد » او « اودیسه » ددغه شاعر مشهورې کیسې دي.

په افغانستان کې هم د لرغوني تاریخ په پیژندنه کې د کیسو ونډه ډیره ده د « آدم خان او درخانۍ » ، « یوسف خان او شیربانو » « رستم او سهراب » او نورې داسې کیسې کولای شي ددغه هیواد د تاریخي او فرهنګي څیرې په پیژندلو کې مرسته وکړي.

د ماشومانو لپاره کیسې په لاندې ډولونو ویشل کیږي:

کیسې او په تیره بیا د ماشومانو لپاره افسانوي کیسې دوه ډوله ویش لري د شکل له مخې ویش او د محتوا له مخې ویش:

د شکل له مخې معمولاً کیسې په دوه ډوله دي.

۱ - منظومې کیسې

۲ - منثورې کیسې.

**۱ - منظومې کیسې:** هغو کیسو ته وايي چې د تاکلي وزن تر څنګ قافیه او ردیف هم ولري. معمولاً داسې کیسې په پخوا زمانو کې د شاعرانو له خوا ویل کیدې او د دې لپاره چې حافظې ته یې سپارل آسانه وي، په نظم به یې ویلې.

همدا او س هم په کلیو الوسپمو کې ولسي سندرغاړو ته اوږدې کیسې یادې دي چې په وزن سره یې د موسیقۍ په مرسته په مجالسو کې وايي، په دې کیسو کې هر ډول په تیره بیا مذهبي حکایتونه ډېرویل کیږي

**۲ - منثورې کیسې:** داعادي کیسې دي چې نه وزن ولري او نه قافیه بلکې د عادي نثر یا متن په توګه ویل کیږي او لیکل کیږي.

## د محتوا له نظره د کیسو ویش:

دا چې په کیسو کې څه هدف او محتوا نغښتل شوې، له پخوا زمانو څخه کیسې په بیلا بیلو ډولو ویشل شوي دي.

**۱ - د ژویو (حیواناتو) کیسې:** دا هغه کیسې دي چې اتلان یې اکثراً حیوانات مرغان او حشرات وي. دا ډول کیسې له ډیرې پخوازمانې څخه د انسانانو په منځ کې دود دي. په ختیځ کې د هندي فیلسوف په قلم لیکل

شوې افسانې (کرنیکا او دمنکا) خورا مشهورې دي چې بیا وروسته د پیړیو په اوږدو کې څو څو ځلې په فارسي ژبه د مختلفو شاعرانو او لیکوالانو په همت راژباړل شوي چې مثالونه یې (کلیله او دمنه) انوار سهیلي او نور داسې کتابونه دي. دا کیسې په ګڼو ژبو ترجمه شوې چې د ګڼو کیسو پرسوناژونه (اتلان) حیوانات دي، ددې کیسو یوه برخه په پښتو هم ترجمه شوې دي. له دې پرته د عامو خلکو تر منځ هم په زرګونو کیسې شته چې د حیواناتو په هکله ویل شوي، په داسې کېسو کې اکثراً زمری هم د حیواناتو مشر وي، ګیدړه د هوښیارۍ او چالاکۍ له امله مشهوره وي، لیوه د حرص او بې عقلۍ نښه وي، میږی د زیار ایستونکي او هوښیار کوچني خزیدونکي په توګه شهرت لري، په ګڼو داسې کیسو کې حیوانات خبرې کولای شي.

**۲- د کوډګرو او جادوګرانو کېسې:** دا د هغو افسانوي کوډګرو کیسې دي چې هر څه یې زړه وغواړي هغه کولای شي. په دې کیسو کې کوډې هم په ښو او هم په بدو کارنو کې ونډه لري، جادوګران او کوډې ځکه په افسانواو کیسو کې ځای لري چې انسانان د ځینو لاس ته راوړنو لپاره کله چې ووینې په رښتیا یې وس نه رسیږي، نو د خیال او فکر په مرسته کوډو ته پناه وړي او خپلې کیسې د فوق العاده حرکاتو په مرسته بشپړ وي.

**۳- د مینې او عشق کیسې:** عشقي کیسې هغه کیسې دي چې په هغو کې د ځلمیو او پیغلو ترمنځ د پاکې او سپیڅلې مینې په هکله پیښې انځوریږي. په داسې کیسو کې معمولاً د اتلانو یو بل ته رسیدل له ستونزو سره مخامخ وي او پیښې داسې رامنځ ته کیږي چې د دوه مینو په لاره کې خنډونه رامنځ ته شي.

داسې کیسې له ډیر پخوا څخه راپاتې دي او ځینې یې په ټوله نړۍ کې مشهورې شوي. لکه آدم خان او درخانۍ ، لیلی او مجنون، شیرین اوفرهاد او نورې.

**٤- ټولنیزې او اخلاقي کیسې:** دا هغه کیسې دي چې هدف ورڅخه پنداو نصیحت وي دا ډول کیسې څرګندوي چې، نیکي ، رښتیا ، صداقت او زړورتیا تل کامیابه وي او دروغ، بدي، چل او دوکه ماته خوري. په داسې کیسو کې هڅه کیږي چې ماشومانو ته د ښو لارو چارو غوره کول او په ټولنه کې د سالم فرد په توګه د ژوند کولو لارې چارې وښودل شي.

**٥- خندوونکې کیسې:** دا هغه کیسې دي چې اوریدونکي خندوي دا کیسې له ټوکو سره دا توپیرلري چې هم اوږدې وي او هم ټاکلې جوړښت لري. چې له پند او نصحیت سره مل وي. خندونکې کیسې د ماشومانو د خوشالۍ او له ژړا څخه د هغوی د پام اړولو لپاره خورا په زړه پورې وسیلې ګڼل کیږي.

اوس به یو شمیر پخوانۍ او نوې داسې کیسې د بیلګوپه توګه راوړو چې د کیسو د پیژندنې په برخه کې بېلګه یې مرسته وکړي:

# د هیواد د پخوانیوا و اوسنیو کیسو ښو بیلګې
# او دهغو لنډه جاج اخیسته

له پټې خزانې څخه:

## قـصه د سوی او د اوښ

د عبداللطیف اڅکزي کیسه

وو، نه وو پـه پخوانیـو زمانو کې یو سوی او یو اوښ وو چې دواړه سره دوستان شول.

د دغـه اوښ او سوی آشنایي دومره خوږه او تـوده شوه چې لـه یوه او بـل پرته بـه یې ژوند نه شو تیـر ولای او پـه دې توګه بـه اوښ او سوی دواړه سره یو ځای اوسیـدل او ژونـد بـه یې پـه خوږو کیسـو او خـوشحـالۍ سره یـو ځـای تیرواه.

عجبه خو داوه چې سوی د اوښ په کور کې اوسیده او تل به یې یو له بل سره کیسـې کولـې داسې چې بیـګـاه بـه یې کیـسـه پیـل کړه نـو تر سبـا بـه یـې کیسې کولې. دوی دواړو په خورا پام یو د بل قدر او عزت کاوه.

څو یوه ورځ سوی پریکړه وکړه چې اوښ خپل کورته را میلمه کړي او یوه ښه خوندوره میلمستیا ورته تیاره کړي. همدا وو چې سوی خپل ټول عزیزان او خپلوان را میلمانه کړل او ورته ویې ویل چې زما ګران او مهربان آشنا یعنې اوښ زما میلمه دی او تا سو هم باید په دغې میلمستیا کې ګډون وکړی.

اوښ چې خبر شو، سوی ورته میلمستیا کړې ده، ډېر خوشاله شو او راغی چې د سوي کره شپه تیره کړي، یو ځاي د هغه له خپلوانو سره ډوډۍ وخوري نو له خپله ځایه راوخوځید راغی او راغی چې د سوي کورته را ورسیده خو ګوري چې د سوي کور ډیر وړوکي دی، دومره وړوکی چې دده یوه ګونډه هم نه په کې ځاییږي. نو همداوو چې د سوی د کور په خوله کې یې ګونډه ووهله او منتظر شو چې سوی به ورته خواړه راوړي. سوی ټول هغه واښه راوړل چې د اوښ لپاره یې تیار کړي و.

اوښ په خوراک پیل وکړ، خو ټول واښه یې ایله یوه مړۍ شول او نور وږی پاتې شو.

سویان ټول وشرمیدل او د اوښ ملګری سوی یې ملامت کړ چې خدای (ج) دې خوار کړه چې میلمستیا کولاې نه شې، ولې له اوښ سره ملګرتوب کوې؟ اوښ ګوره او ته ځان وګوره، ستا او د اوښ څه مناسبت و چې سره ملګرتوب مو کاوه، چې پیلان ساتې پیلخانې به جوړوې او چې اوښان ساتې دروازې به لوړې ږدې، له خپل ټغر سره به پښې سمې غځوې او که همداسې به شر میږیې چې له ځان سره به قوم هم شرموې.

**پایله (نتیجه):** دا کیسه لکه څرنګه چې په خپله لیکوال یې هم ویلې

دي، ددې لپاره ویل شوې چې خلک ورڅخه پندواخلي ،وسې او اندازې سره سمه یارانه او دوستي وکړي.

تا سو وکتل چې سوي له اوښ سره دوستي کوله او کله یې چې میلمه کړ هم ورڅخه وړی پاتې شو او هم یې ورته د شپې تیرو لو ځای نه درلود ه هر څوک چې کوم کار ته لاس غځوي باید لومړی په دې ډاډه اوسي چې کولای یې شي.

دا د حیواناتو له ژبې څخه ویل شوې یوه منظومه کیسه وه چې موږ دلته په ساده نثر راواړوله.

# د بوډۍ ټال

په پخوانۍ زمانه کې زموږ د هیواد (افغانستان) په ختیځ کې لوی ښار پروت و. چې د پخوانۍ ګندهارا او پکتیکا سیمې یې دووخوا و ته پرتې وې، یو لوري ته یې پاریتي او بل لوري ته یې ګنداري قومونو ژوند کاوه. دا قومونه ډېر میړني، مېلمه پال او غښتلي وو. خو خدای (ج) خبر، چې ولې د دوی ترمنځ زړه د ښمني وه او په کلونو کلونو یې یو له بل سره جګړې کولې، وایي، چې یو کال جګړه ډېره شوه، د پاریتي قوم ډېر خلک مړه شول او په کنداري قوم کې د جګړې او وچکالۍ له امله وبا ګډه شوه. د دواړو قومونو خلک ډېر خپه او غمجن وو، ځکه په هغوي کې ورځ په ورځ بد مرغي ډېر یده، د پاریتي قوم په یو کلي کې یو بزګر او سیده. هغه یو زوی درلود چې (سنک) نومېده، سنک ډېر ښه ښکاري او ښه ویشتونکیَ و، هغه یوه وړه لینډۍ هم درلوده، سنک زړور او خورا هوښیار هلک و، کله چې هغه د خپلو خپلو انوژور خپګان او غم ولید، نو یوه ورځ یې له خپل سپین ږیري پلار نه پوښتنه وکړه چې:

- پلار جانه زموږ خلک ولې جګړه کوي؟

پلار یې ځواب ورکړ:

- نه پوهېږم زوي جانه، چې ولې جګړه کوي.

سنک بیا و پوښتل:

- نو په دې راز څوک پوهیږي؟

پلار یې وویل:

- ښايي زموږ لوی نیکه چې د کسي د غره په لوړه څوکه کې اوسيږي پرې وپوهيږي.

له همدې شیبې نه سنک د خپل ستر نیکه د پیدا کولو لپاره له خپل پلار نه اجازه واخیسته او مخ په (کسي غر) وخوځېد.

سنک به خپل منزله نه پریږدو او وبه گورو، چې د گنداریانو په یوه غریبه کورنۍ کې څه تیریدل.

هلته یوه وړه نجلکۍ وه، چې (پیکۍ) نومیده. پلار او موریې دواړه د وبا د ناروغۍ له امله مړه شوې وو. او دې له خپلې زړې انا سره ژوند کاوه. پېکۍ تل په خپل مور او پلار پسې او ښکې تویولې او خپه به ناسته وه، یوه ورځ یې له خپلې انا څخه وپوښتل گرانې انا! د ابد مرغه ناروغې ولې زموږ کلي ته راغلې ده؟

انا یې په حیرانتیا ځواب ورکړ:

- پېکۍ جانې! زه په دې نه پوهېږم، ښايي زموږ ستر پلار چې د کسي په غره کې ژوند کوي پرې وپوهيږي.

پیکۍ له خپلې انا څخه وغوښتل، چې هغې ته اجازه ورکړي چې خپل دغه ستر نیکه ته ورشي او ددې راز پوښتنه ورڅخه وکړي.

انا یې ورته وویل!

- لور جانې که څه هم نه غواړم چې یوه شیبه له ما څخه لرې شې، خوزه

ستا ژړا او اوښکې نه شم لیدی، ورشه او خپل بابا پیدا کړه او د نیکمرغۍ لاره ورځخه و پوښته.

پېکۍ د غره خواته وخوځیده په لاره کې یې یو هلک ولید او پوښتنه یې ترې وکړه:

- سلام ، نوم دې څه شی دی او چېرې ځې ؟

- هلک وویل:

- پر تا هم سلام، نوم مې (سنک) دی. غواړم کسي غره تـه ولاړشم او بابا وګورم، چې ترې وپوښتم ولې زموږ کلي ته د جګړې بلا راننوتلې ده ، ته څوک یې او چېرې ځې ؟

پیکۍ ورته وویل: زمانوم (پیکۍ) ده ، د ګنداریانو د کلي یم، زه هم غواړم ستربابا وګورم او ورځخه پوښتنه وکړم چې دا بد مرغه وبا ولې زموږ کلي ته راغلې ده ؟

سنک په غوسه شو او ویې ویل:

- ښه نو ته ګنداری یې به زموږ د دښمنانو له کورنۍ څخه ؟ ډېر ژر زماله مخې نه لرې شه! پیکۍ په خواره او پسته ژبه ورته وویل:

- ګوره سنک جانه ، زما دښمنی نه خوښیږي زما دښمنه یوازې دوبا ناروغي ده. ځکه زما پلار او موریې وژلي دي ، آیا نه غواړې چې دواړه سره دوستان شو او یو ځای لوی بابا ته ورشو ؟

د سنک پر نجلۍ زړه وسوځیده او ورته یې وویل:

- سمه ده ، راځه چې یو ځای بابا پیدا کړو ، ته ډېره سپیځلې نجلۍ یې. زه نه غواړم له تا سره دښمني وکړم ، اصلاً زه هم نه پوهېږم زموږ خلک ولې

دښمني کوي، زه د کرکې په نامه په خپل زړه کې څه شی نه پېژنم.

او هغوی دواړه د کسي غره د سپینې کلا په لوري وخوځېدل او د بابا د لوی کور وریې وټکولو. کله چې دواړه د بابا مخې ته ودرېدل نو یو ځای یې په لوړ غږ وویل:

– السلام علیکم زموږ مهربانه بابا!

بابا ورته په مینه وویل:

– وعلیکم، ګرانو ماشومانو، تاسې څوک یاست؟ او د څه لپاره تر دې ځایه راغلي یې؟

سنک وویل:

– ګرانه بابا زه پاریتي سنک یم، کلونه کلونه وشول چې زموږ خپل خپلوان، له ګندریانو سره په جګړه بوخت دي او هر ورځ موږ ډېر ځوانان مري، کلي مو سوځي او ورانیږي، موږ په دې نه پوهېږو، چې د دې جګړې اور څنګه مړ کړو؟ نو ځکه تاسې ته راغلو، څو د نیکمرغۍ او سولې لاره راوښیئ.

پیکۍ هم داسې په خبرو پیل وکړ:

– مهربانه نیکه زه (پیکۍ) نومېږم او د سپین غره په لمن کې د ګنداریانو له قبیلې څخه یم، پلار او مور مې دواړه و با ووژل او زموږ نور خپلوان هم نږدې دي چې ټول د دې ناروغۍ خوراک شي، هیله ده تاسې له دې بلا څخه د خلاصون لاره راوښیئ!

بابا یو څه سوچ وکړ او ویې ویل:

– زما ګرانو لمسیانو! زه ډېر افسوس کوم، چې تاسې ډېر کوچني

یاست او نه شئ کولای د نیکمرغي لاره په یواز یتوب پیدا کړئ.

هغوی په پوره ډاډور ته وویل:

- بابا جانـه ته خو لاري راوښیه موږ له هیڅ شي څخه نه ویریږو گوندې خپلو خلکو ته نیکمرغی پیدا کړو.

بابا وویل:

- نو غوږ شئ د پسرلی ښکلي فصل زموږ او تا سو پر سیمه یوه ښکلې لینـدۍ درولـې وه، دغـې لویـې لینـدۍ او وه ډولـه رنگونـه درلودل، جگړه او وباله دغې لیندۍ څخه نه شول اوښتی، نو ځکه زموږ کلي له دې بلا و وڅخه خلاص و، خو څو کاله وړاندې، یوه توره او کوډگره بوډۍ را پیدا شوه، دغه لیندۍ یې د پسرلي له کور څخه غلا کړه او له هغې نه یې ځانته ټال جوړ کړ، چې اوس پـه کې زانگـي راز انگي جگړې او وبا چې ولېدل ښکلې لیندۍ نه شتـه، نو هماغـه وو، چې زمـا پر بچیـانو یـې یرغـل وکړ، هغوی یې په خپلو منځو کې سره دښمن کړل او نور یې دوبا په ناروغۍ ووژل.

نو گرانو بچیانو!

تر څو بوډۍ مړه نـه شي او لیندۍ بېرته په آسمـان کې ونه درول شي، تر هغو نیـکمرغي نـه شي راتلای. او بـوډۍ بـایـد یوازې او یـوازې پر هماغـی لېندۍ وویشتـل شي، چې اوس یې زانـگوده، کـه نه د بلې لیندۍ په ویشتـلو نه مړه کیږي، داخو ډېر لوی کاردی ډېر و مشهور و پهلوانا نو په دې لاره کې خپل ژوند له لاسه ورکړی دی او یا هم دبوډۍ پـه جـېل کې بندیان شوي دي، کوډگره بوډۍ ډېره ظالمه او ویرونـکې ده، هغـه له دې ځایه لرې په یوه غره کې او سیږي، چې (تورغر) یې بولي.

سنک په پوره هوډ او میړانه وویل:

- بابا زه غواړم بوډۍ ووژنم، هیله کوم د تور غره لاره راوښیه، په دې وخت کې پیکۍ وویل:

- زه هم له سنک سره ځم، ګوندې څه مرسته ورسره وکړم. نیکه په ډېره خوشالۍ ورته وویل:

- بچیانو تورغر د لمر پریواته خواته پروت دی، زه په تاسې ډاډ لرم، ځکه چې تاسې په خپل منځ کې ملګرتوب دوستي، یووالی او اتفاق لرئ، ځئ ولاړ شئ زما دعا تاسې سره ده.

له ډېر مزله وروسته یوه ورځ سنک او پیکۍ د تور غره لمنې ته ورسیدل. سنک هلته د یوې تیږې پر سر یوه ډېره ښکلې مرغۍ ولیده، خپله لیندۍ یې له غاړې څخه راوویسته او هغه یې په نښه کړه، خو ډېر ژرپیکۍ هغه ټیل واهه او د سنک غشی په خطا ولاړ او مرغۍ والوته، سنک غوسه شو، خو پیکۍ ورته وویل:

ګوره سنکه! هغه څومره ښکلې مرغۍ ده، ولې دې غوښتل هغه ووژنې؟ ته کولای شې خپله نښه په بل څه و آزمویې، پرالوتونکو باید زړه سوی وشي. سنک څه ونه ویل او هغوی دواړه د بوډۍ د تورې ماڼۍ په لور وخوځیدل. بوډۍ د یوه ځنګله په منځ کې ځانته ماڼۍ جوړه کړې وه. کله چې د سنک او پیکۍ سترګې په هغې ولګیدې ډېرپه ډار شول، بوډۍ خورا ډارونکې څېره درلوده. هغه په یوه ښکلې ټال کې ناسته وه، او زنګیده. ټال او وه رنګه درلودل.

سنک سملاسي خپله کوچنۍ لیندۍ راوویسته په هغې کې یې یو تېره

غشي کېښود ، بوډۍ يې نښه کړه ، ليندۍ يې ښه کش کړه او غشي يې د بوډۍ پرلوري ورخوشې کړ. خو غشی پر بوډۍ و نه لګيده ، يوازې د هغې پام يې د سنک خواته راواړاوه ، بوډۍ کله چې سنک ولېد ، نو په کړس کړس يې وخندل او په غوسه يې ورته وويل:

بد مرغه ماشومه ، تا غوښتل ما ووژنې ؟ خو په دې نه يې خبر چې ډېروسترو سترو پهلوانانو دلته خپل بخت آزمويلی دی . او اوس يا مړه دي او يا خو په جبل کې پراته دي.

ډېر ژر به تا هم په جبل کې وغورځوم ، تر څو وپوهيږې ، چې پر ما باندې غشي وېشتل څه معنا لري.

بوډۍ سمدستي سنک خوارکی په جبل کې بندي کړ ، خو پېکی ځان ديوې ونې شاته پټ کړی و ، ځکه نو بوډۍ هغه ونه شوه ليدی.

پيکۍ خواره کله چې يوازې شوه ، نو په ژړا يې پيل وکړ ، هغه نوره يوازې پاتې شوې وه او سنک د بوډۍ په لومه کې نښتی و. او له بلې خوا ډېره ويريدلې هم وه هغې ډېر وژړل خويو وخت يې پام شو ، چې يوه ښکلې مرغۍ يې څنګ ته پر يوه څانګه ناسته ده او له پيکۍ څخه پوښتنه کوي چې:

-مهرباني نجلۍ ولې ژاړې ؟

پيکۍ ځواب ورکړ:

- بوډۍ زما ملګری (سنک) جبل ته وغورځاوه ، زه نه پوهيږم چې په هغه خوارکي به څه تېر شوي وي ، دا بوډۍ ډېر ظالمه ده ، هغې زموږ د کلي له سر نه هغه ښکلې ليندۍ غلا کړې ده او ځانته يې تال ورڅخه جوړ کړی دی.

موږ غوښتل هغه بېرته د خپل کلي آسمان ته ستنه کړو، چې له هغه ځایه جګړه او وبا ورکه شي.

مرغۍ چې په هر څه پوهېده، نو پیکۍ ته یې وویل:

- ښکلې نجلۍ مه ژاړه، تاله ما سره نیکي کړې ده او خپل ملګرې دې زما له ښکارکولو څخه منع کړ. اوس زه هم حاضره یم له تا سره نیکي وکړم.

پیکۍ ورته وویل:

- اوه ښکلې مرغۍ ډېر افسوس کوم، چې ته ډېره بې وسه یې او له ما سره مرسته نه شې کولای.

مرغۍ ځواب ورکړ:

نه داسې نه ده زه ډېر څه کولای شم، زما داسې سندرې زده دي چې په خپل خواږه غږ سره یې ووایم، نو بوډۍ ته خوب ورولي، دا بوډۍ ډېر درون‌د خوب لري، کله چې هغه ویده شوه، ته ژر د هغې له غاړې څخه د کونجیو کړۍ را خلاصه کړه او خپل ملګرې آزاد کړه، بیا نو کولای شئ له دې ځای څخه وتښتئ، پیکۍ د دې خبرو په اورېدو ډېره خوشاله شوه، مرغۍ سملاسي پاڅېده او د بوډۍ څنګ ته په یوه څانګه کیناسته او په خپل خواږه غږ کې یې داسې ښکلې سندرې پیل کړې، چې بوډۍ ته خوب ورغی. کله چې د بوډۍ خوب ښه درون‌د شو او د خوراوپف غږ یې پورته شو، پیکۍ په ډار ډار ورورانږدې شوه، که څه هم چې بوډۍ ډېره ویرو‌ونکې وه، خو پیکۍ خپل زړه کلک کړ او د هغې له غاړې څخه یې د کونجیو کړۍ پرانیسته، بیا یې په منډه منډه د سنک د بندي خانې وره پرانیست.

سنک په ډېره خوشالۍ له جیل څخه راووت، کله چې هغوی دویدې

بوډۍ له څنګه تېرېدل، ویې لیدل چې بوډۍ په خوب کې له تال څخه را کوزه شوې او پر ځمکه ویده ده. نو سنک ته د ستر بابا خبره ورپه یاد شوه، ډېر ژر یې د پسرلي ښکلې آسماني لیندۍ را خلاصه کړه، یو ښه تېره غشی یې په کې کېښود. هغه یې بوډۍ ته نښه کړه، بیا یې نو لیندۍ ښه راکش کړه او غشی یې د بوډۍ په خوا ورخوشې کړ، غشی مخامخ دویدې بوډۍ په سترګه کې ننوت هغې یوه ویروونکې چیغه وکړه او پر مخې پر ځمکه را نسکوره شوه، د بوډۍ له وژل کېدو سره سم سنک او پیکۍ دواړو په ډېرې خوشالۍ سره ښکلې لیندۍ د آسمان په خوا ګوزاره کړه، لیندۍ له شمال څخه جنوب ته خوره شوه، خپل ښکلي او وه رنګونه یې وځلول او د پسرلي غیره پرې ښکلې شوه.

سنک او پیکۍ دواړه لاس په لاس د خپلو کلیو په لور راغلل، کله چې هغوی د ګنداریانو کلي ته ورسیدل، نووې لیدل چې د پیکۍ انا په خندا هغوی ته غېږ پرانیستې او د هغوی په لیدو یې داسې چیغه کړه:

آه! زما کوچنیو اتلانو وګورئ چې زموږ له کلي څخه څنګه دوبا بد مرغه ناروغۍ وتښتیده. او ټول ناروغان جوړ شول.

وایي چې له دې ورځې وروسته پاریتیانو او ګنداریانو په خپلو منځو کې د ورونو په شان ژوند کاوه، سنک او پیکۍ یو له بل سره واده وکړ او د هغوی له واده سره ددې دواړو قومونو په منځ کې اوږده دښمني په کلکه دوستي او خپلوي بدله شوه، د هغوی واده د ستربابا په سپینه کلا کې تر سره شو. بابا هغوی ته د نیکمرغۍ دعا وکړه دواړو تورغره ته نږدې ځانته کور جوړ کړ او د بوډۍ تال به هر کال پسرلی د هغو د کور په سر ځلیده او هغوی

ته به یې خندل. هغې ښکلې مرغۍ د دوی د کاله پر بام ځاله جوړه کړه او له دوی سره یې، یو ځای ژوند پیل کړ. دې ښکلې مرغۍ چې (درونتهه) نومیده په خپله ځاله کې یې ښکلې هګۍ کېښودې او اوس هم ډله - ډله په دې سیمه کې ژوند کوي او هغه وخت چې د بوډۍ ټال په آسمان کې راښکاره شي نو په ښکلي غبږ دیرې زړه راکښونکې سندرې وایي. دغه سیمه اوس هم (درونتهه) بولي، چې جلال آباد ښار ته نږدې پرته ده.

**پایله:**

دا یوه ښکلې تاریخي کیسه ده چې له هغې څخه د دوستۍ، زړورتیا، کلک هوډ او له جګړې څخه کرکه زده کیږي.

ماشومان له دې کیسې څخه سره له دې چې د خپل هیواد د تاریخ او لرغونیو نومونو او ځایونو د نومونو په هکله معلومات تر لاسه کوي دا هم زده کوي چې څنګه په خپلو کې یو له بل سره دوستي وکړي، له جګړې څخه کرکه ولري او د سولې او ورور ولی لپاره هڅه وکړي، دوی باید د مشرانو خبره ومني او په کارونو کې له خپلو مشرانو سره مشوره وکړي. په الوتونکو او بې ضرره حیواناتو زړه سوی ولري او یو له بل سره مرسته وکړي. چې د سنک او پیکۍ په شان هم خپله خوشاله اوسي او هم خپلو خلکوته خوشالي او سوکالي راولي.

له «پښتو قصې» کتاب څخه:

# زمري او سویه

وايي چې په يو ځنګله کې يو زمرى اوسېده، چې ډېر زور شوى و او د ښکار وس او توان يې نه درلوده، نو يوه ورځ يې ټول حيوانات راغونډ کړل او داېې ورته وويل، چې تاسو خو ګورئ چې زه اوس له کاره پرېوتى يم او په خپله ښکار نه شم کولاى، نو هره ورځ راته يو يو راځئ چې زه مو خورم او د ګېډې کار به مې کيږي، دوى ټولو په ځان باندې و منله چې ښه ده موږ په سراو سترګو خدمت ته تيار ولاړيو. او هر څنګه چې ستا زړه وي، هماغسې موږ آماده يو. حيوانا تو په خپل منځ کې وار کېښود چې له هرې ډلې نه په خپل خپل واريو يو راځي، په دې ډول خبره فيصله شوه ټول له زمري نه رخصت شول، او خپلو خپلو ځايونو ته ولاړل، څه موده چې تېره شوه نو دا حيوانات ټول ددې بيګار له لاسه تر پوزې راغلل. يوه ورځ ټول راغونډ شول او په خپل منځ کې يې دا جرګه وکړه: چې موږ خو ددې زمري له لاسه ډېر په تنګ شوي يو، دا چې هره ورځ رانه يو يو خوري، په آخر کې به مو ټول خلاص کړي، اوس ددې خبرې څه علاج په کار دى، که نه وي نو ټول به خلاص او تباه شو. ټولو يو بل ته مخ واړاوه چې دې کار ته څوک ملا تړلى شي يو هم په ميدان کې پانه څيده، ټولو يو بل ته خړ خړ کتل او هيچا دا زړه نه شو کولاى

چې را پاڅیږي او ځان له زمري سره مخامخ کړي. آخر کې وړه سویه را پاڅیده او ټولو ته یې ډاډ ګیرنه ورکړه ویې ویل: مه خپه کیږئ دا کار به خدای (ج) کوي او زه به یې کوم. هیڅ چرت مه وهئ، د انور حیوانات حیران شول چې سوی ته ګوره او د زمري وژلو ته ګوره، دا به څنګه د زمري کار وکړي؟ یو موټی وجود یې دي، که چا ورته ملاوتړله نو په دوه ګوتو به یې ووژني.

سویه وویل: چې په وجود مې مه غولیږي، که وجود مې ډېر وړوکی دي، خو له ډېرو غټو خټو نه ښه یم. سپک نظر هیچا ته په کار نه دی، ډېر واړه حیوانات دي چې د لویو کار کوي، زه به زمري ووژنم.

حیواناتو ورته وویل: ډېره ښه ده خدای (ج) دې وکړي چې ستا له لاسه څه وشي. موږ نور څه غواړو؟ خو چې د زمري له غمه خلاص شو، په دې خبره د ټولو سلا راغله او له دې فیصلې نه وروسته ټول خپلو خپلو ځایونو ته خواره شول.

یوه ورځ د سویې وار راورسیده چې باید زمري ته ورشي او هغه یې وخوري، خو سویه زمري ته وره نه غله، زمري ډېر وږی شو، سترګې یې په کتو کتو سپینې شوي، چې سبا شو نو زمري له خپله ځایه په قاراوغوسه ووت، سویه هم له خپله ځایه راووته او په لاره کې سره مخامخ شول. زمري ورته په ډېره غوسه وویل:

– پرون چېرې ورکه وې، زه دې له لوږې مړ کړم، په انتظار مې سترګې ووتې:




سويې ځواب ورکړ:

– قربان دې شم، زه خو پرون وختي له ځايه راروانه شوې وم. مګر په لاره کې را باندې يو بل زمري پښبن شو. او زه يې ونيولم، ويل يې چېرته ځې، ما ورته ستا نوم واخيست چې هلته ځم، نو دی راته په غوسه شو چې هغه لا څوک دی چې ته ورځې؟ ډېر ساعت يې په لاره کې ايساره کړم، مګر او س مې ځان ورڅخه په يو چل خلاص کړ. زمري چې دا خبره واوريده، غوسه يې لا زياته شوه. سويې ته يې وويل: راځه ته دا زمري چېرته دی، چې ته يې په لاره کې ايساره کړې وې، زه به يې اوس علاج وکړم. او دا کلانکاري به يې له سر نه وکاږم. سويې ورته وويل: دلته يوه څاه ده هغه زمري په همدې څاه کې اوسيږي، اوس به دې ورولم. سويه مخکې شوه او زمری ورپسې چې د کوهی (څاه) غاړې ته ورسيدل، نو سويه له څاه څخه لرې ودريده او زمري ته يې وويل چې دې څاه ته سرور ښکاره کړه نو تا ته به زمری معلوم شي. زمري چې سرور ښکاره کړ ه اوپه کې يې خپل سيوری وليد، خيال يې وکړ چې دا هغه زمری دی، چې دا سويه يې ايساره کړې وه، نو له قهره سور شو او څاه ته يې ورټوپ کړ. غړپ يې شو چې په څاه کې ولويده، نو سويې له خوشالۍ نه ټوپونه کړل او په منډه منډه لاړه ټول حيوانات يې خبر کړل، چې له خيره سره د زمري له غم نه خومې خلاص کړئ، په داسې کنده کې مې وغورځاوه چې په ټول عمر کې به ترې خلاص نه شي، حيوانا تو ټولو په سويې آفرين ووايه او شاباسی يې ورکړ او ددې چل ته حيران شول.

**پایله:** دا د حیواناتو په ژبه یوه خوږه کیسه وه چې ماشومان ورڅخه پند او تجربه اخیستی شي، لومړی دا چې باید هیڅ څوک خوارونه ګڼل شي او لکه حیواناتو چې سویه ګڼله په سپک نظر چاته کتل په کار نه دي.

او بله دا چې باید سړی په ځان ډاډه ولري او هر کله چې په خپل ځان ډاډه واوسو، لوی لوی کارونه تر سره کولای شو، سویه په خپلې هوښیارۍ ډاډه وه، چې زمری یې له منځه یووړ.

او دریمه دا چې په نور و ظلم کول او په تیاره خواړه غوښتل داسې نتیجه لري لکه زمری چې بلآخره په څاه کې ولویده، زمری خپل زور ته غره وو او نور حیوانات یې خوړل چې په پای کې په خپله د حیواناتو د چل ښکار شو.

# نیکي او ښیګڼه

په نړۍ کې ډول ډول مخلوقات اوسي. یو د هغو له ډلې څخه ځناوردي. ځناور د خپل ژوندانه د تیرولوله پاره ځانګړې طریقې او لارې چارې لري.

وايي چې په یو ځنګل کې د ځناورو پاچا زمري له یوې زمرۍ سره په خوشحالۍ ژوند تیراوه. یوه ورځ نا څاپه زمرۍ په لنګون کې مړه شوه. د هغې ناڅاپي مړینې زمري ډیر پریشانه کړ او د پریشانۍ بوه لویه وجه یې داوه چې د هغې نه درې واړه بچي پاتې شول چې هغو شیدو او نورې پالنې او روزنې ته اړتیا لرله . هغه په همدغو اندیښنو کې ډوب و ، نه پوهیده چې څه وکړي، نا څاپه یې پر هغو او زوسترګې ولګېدلې چې دده له غار نه لږې وړاندې څریدلې. دا هیله ورسره پیدا شوله چې له هغو نه وغواړي چې کومه یوه یې دده بچیانو ته په شیدو ورکولو او روزنه کې مرسته وکړي، په ډېرې عاجزۍ او زارۍ یې هغوی ته سترګې ور واړولې او ورڅخه یې وغوښتل چې دده خواته راشي او یوه ډېره ضروري خبره یې واورې.

نورې اوزې د داړلوله ویرې بوه خوا بله خوا وتښتېدلې. یوې اوزې چې د زمري اندیښمنې څیرې او له عجز او زاریو ډک غبرګ ته پام شو ، دا فکر ورسره پیدا شو چې حتماً زمري ته کومه لویه او سخته ستونزه او مشکل

ورپیښ دي، باید مرسته او ښیگڼه ورسره وکړم. نوبیې ورته وویل: هسې نه چې په دې پلمه چې د غلته دروغوا ړې او بیا مې وداړې. له ما سره وعده وکړه چې خوری به چې نه، نو بیا به زه د غلته درشم او ستا خبره به واورم.

زمري ورته وویل: چې نه خبره د غسې نه ده. زه ډیر پریشانه یم او له تانه په یو کار کې مرسته غواړم. زه وعده کوم چې خورم او داړم دې نه. او زې زړه لوی کړ او ورو ورو د زمري خوا ته راغله او ورته یې وویل: زه به ستا څه کومک وکولی شم؟

زه یوه معمولي او زه یم او ته د ټول ځنګل پاچا یې. زمري د غار خواته اشاره وکړه ویې وویل: هلته زما ددرې واړه بچی دي، موریې تر لنګون وروسته مړه شوې ده.

اوزې چې دا هر څه په خپلو سترګو ولیدل، زمري ته یې وویل. زه په دې کې له تا سره څه مرسته کولي شم؟

زمری وویل: ته له ما سره همدو مره احسان او ښیګڼه وکړه چې وورځې دوه ځلی راځه او دې بچیانو ته مې شیدې ورکوه، زه به ستا د الو به نیکي هیڅکله هیره نه کړم.

اوزې ورسره و منله. له هغې وروسته به هر ه ورځ دوه ځله، سهار او ماښام را تلله او د زمري بچیانو ته به یې شېدې ورکولی. شپې او ورځې تیریدلې او د زمري بچي ورو، ورو لوئیدل تر هغې چې په خپله د ښکار کولو شول.

یوه ورځ زمري او زې ته وویل! تا له ما سره ډېر لویه نیکي وکړه، او س ووایه چې زه ستا څه خدمت وکړم؟

اوزې وویل اې د ځنګله پاچا! زما به له تانه څه هیله او غوښتنه وي، زه یوه اوزه یم، یوه خوا بله خوا په ځنګله کې ګرځم، څرم به او په لږ و وښو هم خپله ګزاره کولې شم. زه له تانه هېڅ نه غواړم.

زمرې چې د اوزې ځواب واورېده، سمدستي یې فیل را وغوښت او ورته یې وویل چې تر دې وروسته ته د دې اوزې نوکر شوې، سهار به دا اوزه پر خپلې شا سپروې، چې هر چېرې ښه واښه وي، هلته به یې بیا یې او د نور ځنګل سیل به پرې هم کوې. تر دې وروسته به فیل د زمري له حکم سره سم هره ورځ اوزه سهار پر خپلې شا سپروله، د ځنګله سیل به هم یې پرې کاوه او ښو څرځایونو ته به یې هم بیوله. ماښام به یې خپل کور ته راوستله. دا سلسله همداسې روانه وه. یوه ورځ سهار چې اوزه پر فیل سپره په ځنګله کې ګرځیدله، فیل د یو ډنډ ترڅنګ تیرېده، د یوې صحرائۍ هیلۍ ورته پام شو، هغې چې اوزه د فیل پر شا سپره ولیدله، حیرانه شوه چې داوړه او زه څنګه دومره لوړ مقام ته رسیدلې او یو لوی او قوي فیل یې په حکم روان دي هیلۍ پر اوزې غږ وکړ: داځه کمال دې کړی چې د الوی فیل دې د ځان تابع کړی دی؟اوزې ځواب ورکړ: په احسان او ښیګڼې کولو مې دالوړ مقام موندلی دی.

هیلۍ چې دا خبره واورېده، نو فکر یې وکړ چې داخو ډېره ښه او آسانه خبره ده، زه هم باید احسان او نیکي وکړم تر څو چې د غسې یو لوړ مقام ته ورسیږم.

په همدې هڅه او لټه کې ګرځیدله، یوه ورځ یې ولیدل چې یو موږک په ډیرې چالاکۍ له خپل سوري څخه راووت، یوه خوا بله خوا یې منډې رامنډې

وهلې. ناڅاپه د اوبو ډنډ ته وغورځیده ، هیلۍ ته سمدستي د اوزي خبره وریاده شوله او فکر یې وکړ چې همدا یې د احسان او نیکۍ وخت دي، د مورک خوا ته چې د دوبیدو په حال کې و ، په چټکۍ سره ورغله، مورک یې پر خپلو پرونو کښیناوه، و چې ته یې پوري بوست. هلته یې ښکته کړ او ورته یې وویل: ته دلته لږ ته خپل ځان وچ کړه. زه به لږ ځان دد ي ډنډ په غاړه مورکړم، بیا به دي بېرته ډنډ هغې بلې غاړې ته ورپوري باسم. څه شیبه وروسته چې هیلۍ ولیدل چې مورک وچ شو ، هغه یې پر خپلو وزرونو سپور او په ډنډ کې هغه بلې خوا ته لاهو شوه. مورک چې سترګې د هیلۍ په وزرونو ولګیدلې، فکر یې وکړ چې څومره ښکلي نرم نازک وزرونه لري. ورو ورو او په ناخبرۍ کې یې په خپلو تیزو غاښونو دهغې د وزرونو د بڼکو په وېستلو پیل وکړ، ډیرې بڼکې یې ورڅخه پرې کړې، خو هغه پرې خبره هم نه شوه. تر هغه چې مورک یې هغې بلې غاړې ته یوړې یوست، مورک یې سمدستی له وزرونو څخه وچې ته ټوپ کړ او په منډه منډه خپلې سوړې ته ننووت.

لږه شیبه وروسته هیلۍ غوښتل چې والوزي او خپلې ځاې ته لاړه شي، هرڅومره خواري چې یې وکړه الوتلی نه شوه، ځکه چې د الوتلو پرونه یې مورک د راپوري وتلو په وخت په غاښونو پریکړي ،ورڅخه غورځیدلي او د الوتلو قوت یې پوره د لاسه ورکړي و ، نو په ټوپونو یې ځان د ځنګله ځناورو د داړلو او یا د خلکو نیولو د ویرې په بوټو او وښو کې پټ کړ.

تر دې وروسته به هغه کله نا کله غلې د وښو او بوټونه راوتله او په ویره ویره به څریدله او دې ته سترګې په لاره وه چې کله به اوزه راځي او دا به ورته

د خپلې نېکۍ د بدلې کیسه بیانوي.

بله ورځ چې ا وزه پر فیل سپره ښېا د ډنډ تر څنګه تیریدله ، هیلۍ ورمخې ته شوه او په شور او فریاد یې ورته وویل:

ستا مشورې خوزه په دغه بدحال کړم. تا خو ویلي وو چې نیکي به دې لوړ مقام ته ورسوي. اوزې ترې وپوښتل:

له چا سره دې نیکي کړې وه ؟

هغې ورته له موږک سره د احسان او ښیګڼې کیسه او پیښه بیان کړه. اوزې وویل: په دې کې شک نشته چې نیکي او ښیګڼه ښه او غوره کار دي، خو کاشکې چې تا یې اصل او نسل ته کتلی او بیا دې نیکي ورسره کړې وای.

**نتیجه:** کیسه د ښیګڼې او نیکي کولو غوره والی څرګندوي، که څه هم نیکي له هر چا سره ښه او غوره ده خو د کیسې نتیجه تاکید کوي چې له هغه چا سره باید نیکي وشي چې نېکۍ پوهیږي او د نیکي کونکی نېکی هیره نه کړي.

# سحر ناکه کلي

کلونه کلونه پخوا د ماورالنهر د ښکلو ښارونو په یو ښار کې یو ځوان اوسیده چې ډیر لټ واو هیڅ کار ته یې ډډه ونه لګیدله. مورا و پلار یې که هغه ته هر څومره نصیحت کاوه چې چیرته په کار پسې ولاړ شي، خو ده به د هغوی په خبرو غوږونه کښول او څه پروایې پرې نه کوله.

تر هغه وخته پورې چې پلار او مور یې ژوندي وو، خو اړه هغوی ورکول ، خو کله چې هغوی له ژونده سترګې پټې کړې ، ځوان داسې څوک نه درلودل چې خرڅ یې ورکړي.

پلار او مور یې هم کومه پانګه او شتمني ورته نه وه پریښې. دې ځوان چیرته له چانه اوریدلي وو چې یوه سحر ناکه کلي شته چې هره دروازه پرې پرانیستل کیږي.

هغه ډیره موده په دې فکر کړي و چې که دا کلي لاس ته ورشي ، په هغې به د خلکو د کورونو دروازې بیرته کوي، غلا به کوی او د غسې به ځان د پیسو او شلق خاوند کړي.

یوه ورځ چې ځوان په ښارګې په لاره روان و، د یو سپین ږیری غږ یې واورید چې په لوړ غږ یې ویل: کلي ګانې لرم هرډول کلی چې تاسې غواړی لرم یې!

ځوان له ځان سره فکروکړ چې ددې سړي خواته ولاړ شي ، کیدای شي

هغه سحر ناکه کلي هم ولري.

ځوان ورغي ورته یې وویل: وامې وریدل چې هر ډول کلي لرې؟

سپین ږیری وویل: هو، هر ډول چې غواړي را سره شته. ځوان وویل: آیا سحر ناکه کلي هم در سره شته؟

سپین ږیری د سترګو لاندې هغه ته په حیرانتیا وکتل او موسکا سره یې وویل: له سحر ناکه کلی؟ اوه، هو، لرم یې!

ځوان پوښتنه وکړه: دا کلي هره دروازه بیرته کولای شي؟

سپین ږیری ځواب ورکړ: هو، هره دروازه بېرته کوي، زه خو تا ته دروغ نه وایم.

ځوان فکر وکړ چې امکان لري دا سپین ږیری درواغ ووایي، نو له لږ فکرنه وروسته یې وویل: که رښتیا وایې راځه چې سمدلاسه ولاړ شو، زمونږ د کور دروازه پرې بیرته کړه.

ځوان او سپین ږیری دواړه روان شول. د بازار د سر ک نه یو یې تنګی کوڅې ته ورو ګرځیدلي او د یوې دروازې مخ ته ودریدل:

ځوان وویل: دا زما کور دی، که رښتیا وایې دروازه یې به بیرته کړي!

سپین ږیري د خپلو کلي ګانو ګیډۍ راواخیسته، یوه کلي یې تری بیله کړ، ځوان ته یې ورکړه او ورته یې وویل: واخله ته پخپله پرې دروازه بیرته کړه.

ځوان چې کلي په کلپ کې کېښوده او حرکت یې ورکړ، دروازه بیرته شوه په داسې حال کې چې سترګی یې له حیرانتیانه رډی راوتلې وی وې ویل:

عجیبه ده، دا خو بیرته شوه.

سپین ږیري د شونډو لاندې وخندل، خو څه یې ونه ویل ځوان ډیر خوشحاله شو، له ځان سره یې وویل: له دې نه به نور ښه کار چیرې وي چې دا واخلم، لاړ شم او هر کور چې غواړم پرې بېرته یې کړم او غلا پکې وکړم.

څو دا فکر هم ورسره پیدا شو چې دا کلي به خامخا گران بیه وي او زه چې پیسې نه لرم دا به کله واخیستلي شم.

پوښتنه یې وکړه. حتماً دا کلی ډیره قیمته ده؟!

سپین ږیري ځواب ورکړ: نه، ډیره گران بیه نه ده، یوه افغانۍ قیمت لري.

ځوان وویل: دا خو ډېره ارزانه ده، یوه افغانۍ خو هیڅ شی هم نه دی، دا خو د یوې معمولي کلي بیه ده!

سپین ږیري وویل: وایم چې گرانه نه ده، ښه څنگه غواړې یې ځوانه؟

ځوان لږ حیران غوندې شو، څنگه یوه کلي چې دومره ارزښت او کمال ولري دې ته دومره دې ارزانه وي؟

د خپل ډاډ له پاره یې وویل: ښه، هره دروازه چې وغواړم پرې بیرته کولی یې شم، ته پری مطمئن یې؟

سپین ږیري وخندل، لاس یې پخپله سپینه ږیره راتیر کړ او وې ویل: هو، دا هره دروازه بیرته کوي، خو یو کوچنی شرط هم لري. ځوان په ډیرې ناراحتۍ سره وپوښتل: څه شرط؟

سپین ږیري وویل: دا کلي هره دروازه بیرته کوي، خو شرط پکې دادی چې هغه شخص پاک، سم او صادق وي.

ځوان وویل: دا سې چې ته وایې، یعنی زه نشم کولي بل کورېې بېرته

کړم؟

سپین ږیري چې لـه لومړی سرنه د څوان په مقصد او غـرض پوهیدلی و، په موسکا سره یې وویل: که لـه اجازی نه پرته د غلا پـه نیت ورشې هیڅکله هم نه.

څوان حیران شو او په فکر کې ډوب شو او بیا یې له ځان سره وویل ښه، چې داسې ده، نو بیا دا خو زما په درد نـه خوري. دا کلي خو یوازی زما خپل کور بیرته کولی شی او په هغې کې هم څه نشته.

سپین ږیری خپلو خبرو تـه ادامه ورکړه!

زویـه! هېڅ داسې سحر آمېزه کلي نشتـه چې د خلکو د کور دروازه ستاسو په مخ ددې له پاره پرانېځی، چې ته پکې غلا وکړې.

سپـین ږیری دا خبره وکړه، خپله لاره یې ونـیوله او روان شو. څوان څه شیبه پـه فکر کې ډوب شو او لـه ځان سره یې وویـل: دا څه وشول زما ټولې هیلې خو پـه همدې سحر نـاکه کلي پورې تړلې وي. څوان چې ډیر خواشیني او نـا امیـده شوی و بې اختـیـاره یې په سپـیـن ږیري پسې منډه کړه او چې ورنږدې شو ورتـه یې وویل: نو زه څه کارو کړم؟

سپـیـن ږیری پـه ژور نـظر څوان تـه وکـتـل او وې ویـل: هـغـه څه چې تـه ورپسې ګرځی، لـه همدا تاسره دي.

څوان په حیرانتیاو ویل: له ما سره؟

سپین ږیری وویل: ستـا د ستونزو او مشکلاتو حل کوونـکی ستا متې او فکر دي ولې هغـه پـه کار نـه اچوې؟ ولي لـه خپل هغو استعدادونو نـه چې خدای ستاوجود ایښي دي، کار نـه اخلي؟

ځوان تکان وخوړ او په فکر کې ډوب شو. بیا یې خپلو متېو ته وکتل، ته به وایې چې داسې نوې قوت او ځواک یې پکې حس کړ چې مخکې یې هېڅکله نه وحس کړی.

سپین ږیری خپلو خبرو ته دوام ورکړ: هغه سړی ته وګوره چې څنګه څټک پر سندان وهي، آیا به د هغې نه قوي نه یې؟

سپین ږیری او ځوان پر سرک د یو آهنګر دوکان ته نږې ولاړ وو. ځوان آهنګر ته ځیر شو چې اوسپنه یې د څټک د ګوزارونو لاندې د موم په شان نرمه شوې وه، او ځوانمرده ځیره یې داورد بتۍ په وړانګو کې بنه ځلیدله.

ځوان څو شیبې د آهنګر د کار په ننداره و. هغه ته په زور فکر کې ډوب تللی و، چې د سپین ږیري غږ هغه ته تکان ورکړ:

– هو، زویه! متې او ماغزه دې د ستونزو او مشکلاتو حل کونکې دي. په هېڅ سحرناکه کلي پسې مه ګرځه!

سپین ږیری دا خبرې وکړې او پخپله مخه ولاړ. او ځوان یې هلته چې په فکر کې ډوب تللی و، یوازې پرېښود. ځوان له ځان سره فکر وکړ:

ښایي چې سپین ږیری رښتیا وایي. باید چې خپلو لستوڼی رابډوهم او د خدای په هیله او مرسته کار شروع کړم.

دوهمه برخه:

# د ماشومانو سندرې (ترانې)

انسانان له ډېرې پخوا زمانې څخه له سندرو او ترانو جوړولو سره مینه لري او د سندرو، ترانو عمر زرګونو کلونو ته رسیږي، د ماشومانو ترانې هم ډېر پخوانی او لرغونی تاریخ لري.

د ماشومانو زیاتره ترانې داسې دي چې د هغوی په خپله ژبه ویل شوي وي. ډېرې ساده او روانې دي، خوږ آهنګ لري او ډېر ځله د ماشومانو له خوا په ګډه ویل کېږي. په داسې ترانو کې د هغه څه په هکله څرګندونې کیږي چې ماشومان یې په خپل چاپیریال کې ویني او ورسره مینه لري، لکه ونې، اوبه، باران، ستوري، ګلونه، حیوانات او نور.

د ماشومانو ځینې ترانې بشپړه معنا نه لري او هغه ځکه چې د لسګونو کلونو په اوږدو کې، کله چې نسل په نسل رالیږدیدلي دي، بدلې شوي وي او کلمات یې اوښتي وي، یا خو کله چې له یوې سیمې څخه بلې سیمې ته انتقالیږي تو پیر مومي په ځینو ترانو او سندروکې د یو شمیر سیمو، کسانو، او شیزونو، نومونه یاد شوي وي چې یا خو د وخت په تیریدو سره بدلیږي او یا هم په نورو سیمو کې د پېژندو وړنه وي، ځکه خو نورو ماشومانو ته مبهم پاتې کیږي، خو سره له دې هم داسې سندرې او ترانې د ماشومانو ترمنځ تل ویل کېږي.

ځینې ترانې د ماشومانو د ګډولو په وخت کې زمزمه کیږي ؛چې له هغو سره یو ځای ځینې ځانګړي حرکات هم تر سره کیږي.

## د ماشومانو په وده او روزنه کې د ترانو ونډه:

سندرې او ترانې دا ښیګڼه لري چې ژر حافظې ته سپارل کیږي ، او ماشومان کولای شي تر څو ځله تکرار وروسته یوه سندره له یاده زده کړي او هغه ځکه چې په ترانوا و شعرونو کې کلمات تا کل شوي ځایونه لري او د ترانې دوزن له مخې باید هره کلمه په خپل خپل ځای وکارول شي، او کله چې ماشومان ترانې له یاده کړي د هغو له حافظې سره مرسته کوي چې وده وکړي او په راتلونکي کې ډېر څه حفظ کړای شي.

ترانې او سندرې د ماشومانو ذهن له وزن ، آهنګ او موسیقي سره هم آشنا کوي او د لومړي ځل لپاره یو ماشوم دا زده کوي چې څنګه له موزونو جملو او بیتونو څخه خوند واخلي. او څرنګه چې موزونه وینا او سندرې د انسان روح ته د آرامتیا احساس وربښي؛ کولای شي ماشومان هم آرامه وساتي. زیاتره میندې کله چې غواړي خپل کوچني ماشومان ویده کړي، هغوی ته له « آللوللو » تر څنګه خوږې سندرې هم زمزمه کوي، چې د کوچنیانو ذهن ته ځانګړی خوند او آرامتیا وربښي.

ترانې او سندرې ماشومان د چاپېریال له نویو شیزونو سره آشنا کوي او کولای شي هغوی د ناوړه کلماتو ، ښکنځلو او بدرد ویلو له زده کولو څخه وژغوري. د ژبپوهنې له نظره د کلماتو سم اداکول، د ترکیبونو ویش او پېژندل او د جملو تړل تر هر څه مخکې د ماشومانو د ترانو او سندرو له لارې ښه زده کیږي. ځینې هوښیار او ذهین ماشومان که د ترانو او سندرو

جوړښت ته پوره ځیرشي؛ کولای شي پخپله هم یو شمیر داسې ترانې او سندرې جوړکړي، چې دا هم د ماشومانو د ادبیاتو په بډاینه کې مرسته کولای شي.

ترانې زده کول او په لوبو کې د هغوي وېل ماشومان سالمو لوبو، بوختیاوو او ورزش ته هم هڅوی چې د پایلې په توګه یې ویلای شو: سندرې او ترانې د ماشومانو له سالمو او په زړه پورې مصروفیتو نو څخه شمېرل کیږي.

## دماشومانو د سندرو ویش:

هغه ترانې او سندرې چې د ماشومانو له خوا او یا خود ماشومانو لپاره ویل شوي دي، په لاندې ډولونو ویشلای شو:

**۱- فولکلوریکې سندرې:** دا دماشومانو لپاره هغه ترانې او سندرې دي چې ویونکي یې نه دي معلوم او له پخوانیو پیړیو څخه یې ماشومان د لوبو پر مهال وایي لکه دا مشهوره ترانه:

اکوبکو ربنالکو، سرسندکو

غوامې لاړه په دربکو... ترپایه

**۲- د ماشومانو لپاره ویل شوي شعرونه او ترانې:** دا د معلومو شاعرانو له خوا د ماشومانو لپاره ویل شوې ترانې او شعرونه دي چې د کوچنیانو د خوشالولو او مصروفیت لپاره ویل شوي وي او ماشومانه احساسات او عواطف په کې خوندي وي.

**۳- د میند و له خوا ویل شوې ترانې او شعرونه:** کله کله میندې او اناګانې چې غواړي ماشوم ویده کړي، او یا یې له ژړا څخه غلی کړي؛ خوږې

منظومې سندرې ورته وايي د «آللوللو» په نامه سندرې ډېرې مشهورې دي.

ځينې وخت ميندې په داسې سندروکې خوږې کيسې هم کوي چې هغه هم منظومې وي او کوچنيان د خواږه خوب نړۍ ته ور مېلمانه کوي.

## د ماشومانو د ترانو څو بيلګې:

**فولکلوري ترانې:**

مورمې تلـلې ده کامې ته
را به شي غرمې ته
ما ته به پلـي راوړي
پلي به زه غوا ته ورکړم
غوا به ما ته پې راکړي
پې به زه سيند ته ورکړم
سيند به ما ته ګاټي راکړي
ګاټي به زه خدای ته ورکړم
خدای به ما ته ورور راکړي
وه وروره بيدار شه
ستا په لونګې ډزې دي
ګډې وډې ورځې دي

* * *

(٢)

بارانه مه وریږه
پاس په کمره وریږه
جینکۍ ټولې دي
پاس په بام شولې دي
جینکۍ تار په تار
علي ټوپک د ګوزار
نری نری باران دی
بابا مې راروان دی
د کټ لاندې پېشو ده
پېشو ته وایه پشې
بابا ته ستړي مه شې

* * *

(٣)

شولې، واړه شولې
دشګۍ شولې سمسورې
ستاورور به شولې راوړي
درومال په پلو پورې
واخله خپلې مورې
داسې نه دي، لکه تورې

* * *

(٤)

اکو، بکو دم دړکو
انار اوړي سري کپی
مړک یې وویشت پرلکی
خواره شي ابی
بابو جان دي لیونی کړ
په داتشه څو تکی
اکو، بکو، سر سیندکو
غوامي ولاړه په ترپکو
اباسین بیالې، بیالې
په کې ناسته درخانی

* * *

(٥)

د گنجي پر سرو ینبته دي
څلور دي، که پینځه دي
چاړه پرې اثر نه کړي
د بیاتیو پرې شرنگار دی
پک مې جمه دار دي

* * *

(٦)

لا يې مه بر خوړته
خوړکې يو چنارو
د چنار لاندې مارو
د مار په خوله کې تارو
تار زما په کارو
نه ښم د جبې اوبه
خوله به مې تنا کې شي
وطن به رانه پاتې شي

***

(٧)

نن به کړو، سبا به کړو
دربه کړو پيدا به کړو
په خدای به شي، په تا به شي
ته زموږ ورور يې
شل کاله به گورې

***

(٨)

اوښه اوښه ډانگه
ډانگه دې غړانگه
په ببره کې تال واچوه
سبا، بېگاه پرې زانگه

***

(٩)

لمـــرختـــلـــی بـــاران اوري

گـــیـــدړه و دوي، شـــغـــال یـــې گـــوري

لمـــرختـــلـــی بـــاران اوري

موږک پرغونډۍ ناست دی، د مستو بدلې بولي

***

(١٠)

کـــاشـــکـــې زه کـــوتـــره وای

نـــاســـتـــه پـــه ډبـــره وای

غـــاړه مـــې کـــمـــره وای

الا جـــیـــن جـــیـــن جـــیـــن

پـــه کـــمـــیـــس کـــې مـــې ده چـــیـــن

ماشومانو ته د ویل شویو شعرونو بیلگې:

## کتاب

کـــتـــاب لـــوســـتـــلـــی شـــمـــه

کـــتـــاب لـــیـــکـــلـــی شـــمـــه

کـــتـــاب مـــلـــگـــری زمـــا

ښـــه یـــې ســـاتـــلـــي شـــمـــه

کتاب کې پوهه ډېره
زه یادولی شمه
کتاب ښوونکي زموږ
ورته ویلي شمه
کتاب را ښایي لارې
وربانديې تللی شمه

«روغمن»

# باران

شي د لمر له تودوخې نه
د اوبو پورته بړاس
توره وریځ شي ورنه جوړه
وخیژي چې هسک ته پاس
بیا وریږي بارانونه
اوبوي وچې بید یا وې
د مږو خاورو په رګو کې
وچلیږي بیرته ساوې
پسرلی، اوړی، منی، ژمی
خورا خوند کړي بارانونه
وچکالي وچو به نه وي
ښیرازي وي او کښتونه

# سورکی چرګ

زما سورکیه چرګه
لکۍ دې برګه برګه
بڼکې رنګارنګ لرې
په سهار د اذان کړنګ لرې
دغمي په څېر دې سره کرکره
ګرځه چرګانو سره
ما ته کوکوکو وایه
لاره د سبا وښایه
ښکلې د جرجورۍ دی
غاړه دې ده د ننګه
زما سورکیه چرګه
زما سوزکیه چرګه

# پلار ته!

ګرانه پلاره ګرانه!
زما د زړه ارمانه!
تا نه مې کړه پوهه زده
پلاره مهربانه!
سترګوکې دې مینه ده
مینه دې نیاز بینه ده
زما د وجود هر رګ کې
ستا وجود وینه ده
زما د لویېدو جهان
ستا د زړګي لوی ارمان
زما زده کړه ده هیله ستا
خو مره یې ته لوی انسان
پوهه به کړم زده پلاره
ستا هیله به کړم پوره
ګرانه پلاره ګرانه!
زما د زړه ارمانه!

## د ميندو له خوا د وېل شويو سندرو بېلګې:

(۱)

آللو للو للو دلته مه راځيه غلو
د کندو شاته ټوپک ده له تورو سا چموډک ده
آللو للو للو
آللو للو للو دلته مه راځه پیشو
کټوه کې مستې دي پیشکې ورته غلې دي
آللو للو للو

***

(۲)

آللو للو للو ځوی مې پالوان دی
زما د زړه ارمان دی
آللو للو للو ځوی مې ښه سړی دی
د زرو ډک منګی دی
آللو للو للو ځوی به مې پاچا شي
پلار به یې وزیر وي
دښمن باندې به یې ویروي

دریمه برخه:

# د ماشومانو لوبې

لوبې کول د ماشومتوب د دورې یوه حتمي او لازمي ځانګړتیا ده، ماشومان د خوړو، څکلو او ساه ایستلو په شان لوبو ته هم اړتیا لري. لوبې د ماشوم په جسمي او ذهني وده کې د پام وړ ونډه لري. همداچې کوچنیان خیز کې او دریکې وهي، منډه اخلي، لاسونه خوځوي نو په جسمي وده کې یې د پام وړ پر مختګ راځي، لوبې کول د ماشوم د روغتیا ښه ګټه کیږي او هغه ماشوم چې په لوبو کې ډېر هوښیار، تکړه او فعال وي ښه او روښانه راتلونکې لري. په ډله ایزو لوبو کې ماشومان هڅه کوي تر خپلو همزولو وړاندې شي او ځان د لوبو اتل کړي. د اتلولۍ لپاره لومړنۍ هڅې او هیلې له همدې ځایه پیل کیږي. ماشوم خپل ذهني او فکري ځواک راټولوي او هڅه کوي له هر امکان څخه ګټه واخلي چې لوبه د خپل ځان یا خپل ټیم په ګټه پای ته ورسوي. چې داسې هڅې د ماشوم د فکري پر مختیا او جسمي ودې لامل ګرځي. له بلې خوا د پیدا کوژبکې اروا پوهنې له نظره، همدا چې کوچنی وییني له نورو همزولو سره مخامخ دی چې ځینې تر ده ځواکمن او ځینې ورڅخه کمزورې دي، نو له ځان سره پریکړه کوي ځان د ځواکمنتیا لوړې مرحلې ته ورسوي، خو په هره لوبه کې تر ځانه لاځواکمن همزولي ویني او دده هڅه او کوښښ نور هم پر مخ ځي چې بالاخره همدا هڅې او کوښښونه دده د شخصیت په ایجاد، ودې او بشپړ تیا کې بنسټیز او اساسي رول لوبوي.

هغه ماشومان چې يوازې وي او له خپل ځان سره لوبې کوي نظر هغو ماشومانو ته چې په ډليېزو لوبو کې برخه اخلي، بې جرئته، وروسته پاتې او کمزوري وي. او فکري او جسمي استعدادونه يې سمه و ده نه شي کولای.

د ماشوم په ژوند کې د لوبو د همدې ارزښتونو له مخې ده چې د هرې ټولنې په فرهنګ کې په سلګونو داسې عاميانه لوبې د ودشوې چې فولکلور پوهان او کولتور پېژندونکي يې د څېړلو او پېژندلو په برخه کې هڅه کوي.

زموږ په ټولنه کې ماشومانه لوبې کولای شو په دريو ډلو وو يشو:

**۱- د هلکانو ځانګړې لوبې:** دا هغه لوبې دي چې معمولاً يې هلکان په خپلو منځوکې سره کوي او تر ډېره جسمي حرکات په کې درانه او ډېروي. لکه ډنډه کلک (ډی) ګيرول (ګيرکان)، تيږه اچول، توپ ډنډه او نورې لوبې.

**۲- د نجونو ځانګړې لوبې:** دا د نجونو ځانګړې لوبې دي چې په خپلو منځو کې يې تر سره کوي او جسمي حرکات په کې ډېر درانه او ثقيل نه وي، لکه: نانځکی کول، کورکاني، پنجاق، جزبازي، رسۍ لوبه، پټ پټکان او نورې لوبې.

**۳- ګډې لوبې:** چې هلکان او نجونې يې په ګډه تر سره کوي.

ډی (ډنډه کلک):

دا په هلکانو کې يوه پخوانۍ لوبه ده چې له دوو څخه د زياتو هلکانو ترمنځ تر سره کيږي. لوبه د دوو لرګيو په مرسته پر مخ ځي يو (ډنډه) ده چې له ٦٠ نيونې تر ٩٠ سانتي متروپورې اوږدوالی لري، او بل يې لغړی

(کلک) وي چې یوه لویشت اوږدوالی لري. د کلک دواړه خواوې نظر د هغه منځ ته نرۍ شوې وي. ډی په پراخو میدوانونوکې تر سره کیږي، او ددې لپاره چې له لغړی څخه سم کار واخیستل شي، یوځانګړې ځای ورتـه کیندل کیږي چې له هغه ځایه بیاوویشتل شي.

لومړی هغه ماشومان چې غواړي په دغې لوبې کې ګډون وکړي په دووډلو ویشل کیږي، هره ډله یو مشر لري چې په لوبه کې ورتـه (میر) وایي، په دې لوبه کې بایلونکې ډلې ته شرط ایښودل کیږي چې یا به دساه تر سوزیدو پورې د (زو) غږ باسي؛ یا به د ګټونکې ډلې یو کس په اوږوسپروي .دا چې لومړی وار (نوبت) به د چاوي په دې پچه اچول کیږي یا «شیر خط» او یاهم «وچه اولمده» د پیل کوونکې ډلې لوری معلوموي. د لومړي نوبت خاونده ډله د هغه جر تر خوا راټولیږي چې کلک یا لغړي ورڅخه ویشتل کیږي، د مقابلې ډلې غړي د لوبې د میدان په بله څنډه کې لمنې په لاس ولاړوي چې کلک (لغړی) قپ کړي. لومړی لوبغاړی لغړی په جر تېرو بېرږدي او ډنډه ورلاندې کوي. د ډنډې په مرستـه لغړی یو څه پاس ګزاروي او بیا یې ښه په زوره په ډنډې د مقابل ټیم خواته ورولي، د مقابل ټیم غړي هڅه کوي په لاسونویا لمنې لغړي ونیسي او که یې ونیوه، نو د لغړي ویشتونکی لوبغاړی سوځي او که یې و نه شو نیول، نو بیا یې بیرته د جرخواتـه ورګوزاروي. که لغړی نږدې د جرخواته ولویږي، د (ډی) یا ډنډې د اوږدوالی پـه اندازه ولویږی او پـه ډنډه یې دفـاع ونـه شي ، نـو ددې ډلې داغړی سوزیږی . او پر ځای یې بل راځي خو که کلکی (لغړی) لـه جرنه لرې پریوځي او یا یې ډنډه پـه لاس لو بغاړی پـه ډنډه لرې وشړي، نو بیا ډ سې

لرونکی لوبغاړی کولای شي چې دری واری نور هم کلکی په ډډ ووهي او له کوتی (جر) نه یې لری وشړي. په دریم وار چې هر څومره لرې لاړو، بیا دا ډله له هغی ځایه په همدې دنډې یا دی دا واټن اندازه کوي چې هره ډډی اندازه یې حسابیږي. هر څومره چې شمیروي دا ټول په یاد ساتي. او بیرته بیا په همدی ترتیب لو به مخکی ځي. کله چې دا تن وسوځیږي په ترتیب ددی ډلی غړی یو په بل پسی راځی او چې هر څومره شمیری یې جوړی کړی میږنورور زیاتیږی لکه چې د لومړی ډلی ټول غړی وسوځیږي ددویمی ډلی غړی ډلی (ډنډه) اخلی اولو به پیل کوی . په آخر کې د دواړو ډلو جوړې کړی شمیری سره پر تله کوی. چې د هر ډلی شمیری زیاتی وی هماغه د لوبې ګټونکی شمیرل کیږي.

## رسۍ کشول:

دا د ماشومانو یوه داسې لوبه ده چې د دوه ډلو ترمنځ تر سره کیږي او په هغې کې د ماشومانو غښتلتیا او زور آزمویل کیږی.

لومړي ماشومان او تنکي زلمیان د لوبو کولو ډګر (میدان) ته راځي او په دوه ډلو ویشل کیږي. په لومړی سر کې دوه کسه میران یا مشران ټاکل کیږي. او بیا نور همزولي په خپل منځ کې سره بډه کیږي، او بل کس د بل میر په ډله کې شاملیږي. کله چې د هر میر کسان پوره شول، نو بیا د لوبې میران یوه غټ رسۍ پیدا کوي .چې په پخوا وختو کې به یې دغه پیړی له څادر ونو څخه تاوولہ. مګر اوس یې له سنډ و څخه جوړه شوې رسۍ باندې لو به تر سره کوي.

رسۍ د لوبې په میدان کې اوږده غزوي او د لوبې په میدان کې یوه

مستقیمه (سیخه) کرښه و باسي. چې یو مشر لوبې کوونکی په د کرښې یوې خواته، او بل به یې بلې خواته دریږي. او اوږده شوې رسۍ به دواړه ډلې په خپلو منګلولو کې کلکه نېسي، د دواړو لوبډلو تر منځ به یو داسې کس چې مشروي، ولاړوي او د لوبې د پیلیدو اعلان به کوي. همدا چې منځګړی وویل: یو ، دوه ، درې... لوبه پیلیږي، دواړه ډلې په زوره رسۍ د خپل لوري په خوا راکشوي او هڅه کوي، مخالف لوری د ځان خواته راوکاږي. منځګړی به پوره دقت څیروي چې کومه خوا ز وروره کیږي. که د هرې ډلې لومړی ګډون کوونکی له تاکلې کرښې څخه را تیرشو. نو له لوبې څخه ځي او هلته کیني پاتې ډله به رسۍ کشوي تر دې چې وروستی ګډون کوونکی هم له کرښې څخه را تېرشي. او ګټونکې ډله بریالۍ اعلان شي.

## چندرۍ:

چندرۍ هغه لوبه ده چې ماشومان یې زیاتره د ژمي په موسم کې په کلیو کې کوي. پدغه لوبه کې له دوونه تر دریو ماشومانو برخه اخلي.

خپله «چندرۍ» هغه هواره او ګرده تیګه ده چې د نسوار و دډبلي د سر په اندازه وي. او پدغه لوبه کې ماشومان کارترې اخلي.

ماشومان لمړی د یوه اوږده مستطیل په شکل د مځکې پر مخ کرښې باسي او بیا یې په څوبر خو ویشي چې کټ مټ یې شکل د لرګیو زینې ته ورته وي. او هرې برخې ته یې «خانه» یا کور وایي. او بیا هر کور ځان ته نوم لري چې له ښکته نه پورته پدې ډول وي:

لمړی خانه ، دو همه خانه، تنګړیچ ، دمه، کمکی توپ ، لوی توپ او له هغه اخو «سرې صحرا » لومړی یو ماشوم د تیګې چندرۍ په لومړۍ خانه

کې اچوي او بیا په یوه پښنه هغه له دغې خانې را باسي ، بیا یې په دوهمه خانه کې اچوي او په یوه پښنه ورځي او راباسي یې. بیا یې په « تنګریچ » کې اچوي . خو له تنګریچ نه ایستل یې ګران وي. ځکه تنګریچ ډیر تنګ یعنې د یوه پل په اندازه وي. که چیرې د چندرۍ د ایستلو په وخت کې د چندرۍ وهونکي پښنه په کوم خط ولګیده نو بیا وایې چې وسوځیده او بیا د بل ماشوم نوبت کیږي.

له تنګریچ نه وروسته بیا چندرۍ په « دمه ځای » کې اچوي او په یوه پښنه ورځي او په دمه کې کولای شي په دواړو پښو ودریږي او دمه جوړه کړي. له هغه وروسته یې بیا په « کم توپ » کې اچوي او په یوه پښنه ورځي او په یوه پښنه یې راباسي چې باید چندرۍ به تنګریچ کې او یا د کوم خط په سرونه لویږي که ولوید ماشوم سوځیدلی دئ. له هغه وروسته یې بیا په لوی توپ کې اچوي او په هماغه ډول یې په یوه پښنه راباسي.

تر هغه وروسته یې په سرې صحرا کې اچوي. په یوه پښنه ورځي او باید له « لوی توپ » نه هم ګام واچوي او هم باید چندرۍ پکی ونه لویږي، که چیرې د چندرۍ دراایستو په وخت کې چندرۍ په تنګریچ کې ولویده ، نو لوبه « توی درې » یعنې هر څه له منځه تللي ، او باید لوبه له سره له لمړۍ خانې پیل کړي. او که نه د سرې صحرا په وهلو سره لوبغاړی ګټونکی حسابیږي.

## غومبۍ غومبۍ :

دا په کلیو کې د ماشومانو یوه داسې لوبه ده ،چې اکثراً په پسرلي او اوړي کې تر سره کیږي. لومړۍ لوبې کوونکي ماشومان په دوه ډلو ویشل

کیږي چې شمیر یې پینځو پینځو او یا زیاتو ماشومانو ته رسیږي.

دا ماشومان هڅه کوي پاکه شګه پیدا کړي، او بیا خپلې لمنې ورڅخه ډکوي وروسته د هرې ډلې ماشوم یو پټ ځای پیدا کوي او هلته د شګو کوټه (غومبۍ) جوړوي. خوداسې چې هغه نور ملګري یې و نه شي لیدای. وروسته بیا د دواړو ډلو ترمنځ غږ کیږي چې ورانول پیل شول. دواړه ډلې هڅه کوي د بلې ډلې جوړې کړې کوټې (غومبۍ) ورانې کړي، ماشومان باید دومره هوښیار وي چې د خپلې ډلې جوړې کړې غومبۍ وپیژني او ورانې یې نه کړي. همدا چې دواړه ډلې مطمئنې شوې، چې نورنو غومبۍ نه دي پاتې، بیانو د پټوشویو غومبیو په شمار لوپیل کوي. هر څوک ؟ لومړی د خپلې غومبۍ نښه وایی او بیا به یې ښیي، په پای کې چې د هرې ډلې پاتې شوې غومبۍ ډېرې وختې، د هغو د شمیر په اندازه به مخامخ ډلې ته وریه شاه کیږي. او د مخامخ ډلې (چې لوبه یې بایللې ده) غړي به دوی ته چکرور کوي.

دا لوبه معمولاً د غرونو په لمنو او داسې ډاګونو کې ترسره کیږي چې پاکه شګه او ریګ هلته موجود وي.

**خوسی:**

دا به یوازې د هلکانو ترمنځه کیږي، چې د لوبې د ځای لپاره یو هوار میدان ټاکي. هلکان په دوه لوب ډلو وېشل کیږي چې دوه تنه تکړه یې میران ټاکل کیږي او نوریې سره رامني. هر څوک چې د هری ډلې ورسیده، په همغی کې دریږي.

دا چې په دې لوبه کې یو بل ته لاس اچول کیږي ،او د هغه د پرڅولو

کوشش کیږي؛ نو معمولاً هلکان خپل کمیسونه باسي چې د لاس اچولو په وخت کې څېرې نه شي. او همدا رنګه په آسانۍ ونه نیول شي. دوی په میدان کې تر وچې لمدې یا شېږ او خط وروسته دوه ډلې کیږي. چې یوه ډله یې د (توپۍ) یا د خاورو د ډېرې ساتنه کوي. او په بله ډله کې د (خوسۍ) په نوم هغه ځوک وي چې هڅه کوي په دې توپۍ پښنه کېږدي.

توپۍ له اوږده خاورو څخه جوړشوې ډېرۍ وي چې د لوبې یوه ډله یې ساتنه کوي او ځوتنه ترې چاپېره یو پښنه نیولي ولاړ وي.

په دې لوبه کې ټول هلکان معمولاً په یوه ښې پښنه ګغلي. او چپه پښنه یې په ښي لاس کلکه نیولې وي او په کینې لاس د نورو سره پرځوني کوي. هر کله چې د کوم لوبغاړي د ښي لاسه نه د هغه پښنه خوشې شي، دی سوځیدلی حسابېږي.

په لوبه کې لومړۍ ډله د (توپۍ) ساتنه کوي. په دو همه ډله کې چې د توپۍ نه لرې ولاړه وي، یو هلک د (خوسۍ) په نوم نومول شوی وي. چې هغه دنده لرې ځو د نور، ملګرو په مرسته په توپۍ چې د بلې ډلې په واک کې ده پښنه کېږدي. (توپۍ ووهي) د (خوسۍ) لپاره معمولاً داسې کسان ټاکل کیږي چې د خوسی په ځغاسته کې تر ټولو چابک او چټک وي.

دلو مړی ډلې لوبغاړی هڅه کوي چې ځانونه خوسۍ ته ورسوي. او هغه و سوزوی خود دوهمې ډلې لوبغاړی له خوسۍ نه کلکه ساتنه کوي او (خوسۍ) هم د خپلې ډلې د ملګرو شاته وي او کوشش کوي چې له یوې خوندي لارې ځان توپۍ (د خاورې ډېرۍ) ته چې د بلې ډلې په واک کې وی، ورسوی او هغه ووهي.

دواړه ډلې معمولاً د ځینو ځانګړو کلماتو پرویلو خپلې پښې نیسي،

تر دې وروسته که هر چا پښه له لاسه خوشې شي، سوې حسابېږي. د دواړو ډلو غړي معمولاً خپلو همغو هلکانو ته په پرځولو ورځي چې ورسره یې په پیل کې رامنلي وي. خو حق لري چې د خپلو ملګرو سره هم د نورو په پرځولو کې مرسته وکړي او یا نورو ته په پرځولو ورشي.

معمولاً خوسۍ د لوبې د ډیرو غړو تر سوځیدو وروسته یا ټوپۍ وهي، او یا سوځول کیږي ځکه په لومړي سر کې دواړه ډلې د ټوپۍ او خوسۍ کلکه ساتنه کوي خو کله چې پر له پسې توګه وسوځیږي، نو میدان کې یوازې خوسۍ او څونور پاتې شي.

کله نا کله داسې (خوسۍ) هلکان چې په ځغاسته کې تکړه وي، په هماغه توده کې ځان په ډېره چابکۍ ټوپۍ ته رسوي، او په داسې حال کې چې نور به د یو بل په پرځولو اخته وي (خوسۍ) ټوپۍ وهي. او یا بر عکس د مقابل لوري کوم چابک لوبغاړی ځان په یوه لاره (خوسۍ) ته رسوي او هغه سوزوي.

کله چې یوه ډله وسوزیږي د (خوسۍ) او ټوپۍ ځایونه له یو بل سره بدلوي. بایله داوې چې که هرې ډلې پنځه ځلې ټوپۍ ووهله، نو له بلې ډلې څخه د واده په نوم یو هلک آخلي چې د واده وړونکې ډلې هلکان د خولې ډول وهي او چک چکۍ وهي. خو دا لوبې ډېر کمې دواده مرحلې ته رسیږي. او ډېر کله یو ډله هم نه توانیږي چې د لوبې تر پایه پنځه واري ټوپۍ ووهي.

دا لوبه په وړو سر بېره کله نا کله د لویانو او ځلمیانو لخوا هم کیږي. په لوبه کې کله نا کله وړو او کمزورو لوبغاړو ته اجازه ورکول کیږي چې د پښې پر ځای دې خپل غوږ ونیسي او په دواړو پښو دې منډې وهي. خو که غوږ یې خوشې کړ، سوې حسابیږي.

# د نجونو لوبې

## نانځکې او کورکانې:

دا د نجونو تر منځ هغه ذوقي لوبې دي چې تر ډېره بريده عاطفي او خورا صميمي لوبې هم ورته ويلي شو. نجونې له نانځکو ، رنګه، رنګه ټوټو غميو ، او نورو شيزونو سره خورا مينه لري. هر کله چې ځلور پنځه کوچنۍ نجونې سره يو ځای شي ، هره يوه يې خپلې نانځکې او نور کوچني لوښي راوړي او په خپلو کې سره لوبې کوي، پخوا به يې نانځکې له ټوټو څخه جوړولې داسې چې د ټوټو يو پېډ وکی به يې جوړ کړ چې د غه پنډوکي به يې جوړ کړ او د تورو سنډو په ګندلو سره به يې په هغې سپينه ټوټه کې پوزه ، سترګې او خوله جوړه کړه چې د غه پندوکي ته به يې پوښ کړی و ، له هغه وروسته به يې له تاوکړو ټوټو څخه لاس ، پښې او ځان جوړ کړل چې وروسته به يې له زري او ښکلو تکو ټوټو څخه جامې او ټيکری هم ورته جوړ کړل ، خو اوس او س ډول ډول نانځکې پلورل کيږي او نجونې يې په لوبو کې شاملوي خو په کليو او بانډو کې اوس هم د ټوټو نانځکې دود دي.

د لوبو پر مهال هره نجلۍ د يوې مور او د کور د مشرې تمثيل کوي هره نانځکه ځانته نوم لري: يوه غټه نانځکه مور وي او نورې لورګانې ، خويندې او واړه ماشومان، هر نجلۍ ځانته د ديوالونو خوانه د کور ځای جوړوي هغه پاکوي د ناستې کوټه، د ميلمنو کوټه او نور هرڅه معلوم وي. ګڼې نجونې له ختمو څخه ديګي ، کاسې ، پيالې او د کورنور لوښي هم جوړ وي. يوه وړوکې سپينه ټوټه د دسترخوان په توګه کاروي. کله چې کورونه چمتو شول، بيانو نجونې يو د بل کورته ميلمه ځي. کوچنۍ نجونې يا په

خپله د مور او مشرې رول لوبوي او يا هم کومې غتې نانځکې ته دا رول ورسپاري. کله چې نجونې يو له بل سره خبرې کوي، هڅه کوي د خپلو ميندو او مشرانو په شان پخې او سنگينې خبرې وکړي.

د بيلگې په توگه دا ديالوگ وگورئ چې د نجونو د يوې لوبې له جريان څخه کټ مټ په ټيپ کې ثبت شوېدی:

- ټک ټک ټک (دروازه ټکوي)

- څوک يې دروازه خلاصه ده راځه (يوه نجلکۍ چې په کور کې ده غږ کوي)

- شاه بي بي خورې په کور کې يې؟

- هو! وی کوريان دې شم ببو گلې خورې راځه ايله په ايله...

- خورې ايوانان (ماشومان) مې ناجوړه وو او که نه وخته دې پوښتنې ته راتلم

- راځه خورې راځه دلته په دې کوټه کې به سره کينو...

او دا ديالوگونه هم داسې دوام کوي

په زړه پورې داده چې په دغو لوبو کې کله کله وړې نجونې خپلې نانځکې يو بل ته ورو روي، هغه نانځکه چې گواکې ناوې وي، بايد ښه زري کميس او رنگه رنگه جامې ولري، تول هغه مراسم چې کوچنيو نجونو په ودنو يا کوژدو کې ليدلي وي، دلته هم تر سره کيږي. نجونې رنگارنگ ټوټې سره يوځای کوي او د ناوې جامې ورڅخه جوړ وي، کوچنۍ نجونې يا په وړو چمبو (دايرو) يا پتنوس او يا هم دډبگي په سر پوښ، دايره وهي او په وړو وړو ژبو سندرې وايي. (آهسته برو) سندره د کوچنيو ماشومانو زده وي او کله کله ښکلې ټپې هم ورسره يوځای کوي.

**نتیجه:**

نانځکې او کورکاني له کورني ژوند سره د کوچنیو نجونو د عادت کولو او بلد یدو تر ټولو جدي مشق او تمرین ګڼل کیږي. نجونې له همدې لوبو څخه زده کوي چې په خپلو منځو کې څه ډول خبرې وکړي، د کور چارې څه ډول سمبال کړي، ماشومان څنګه وروزي او د کور کلي دود دستور څنګه تر سره کړي؟

له بلې خوا دغه لوبې د خیاطي، کور ساتلو او د جامو په تنظیم کې د کوچنیو نجونو لومړني تمرینونه دي، چې د نجونو په روز نه کې خورا ډېر مهم ګڼل کیدای شي.

جز لوبه (لشپ اچول):

دا د کوچنیو نجونو لوبه ده چې له دوو څخه زیاتې نجونې سره یوځای کیږي او ډېره معموله لوبه ده. لومړی کوچنۍ نجونې په سکرو، تباشیر یا کودوړي باندې پر ځمکه یو جدول رسموي چې هر کورګي یې له نیم متر څخه نیولې تریو متر پورې بروسور ولري، هر کورګی نوم لري، او له لومړني کورګي څخه په یو، دوه درې، څلور... پیل کیږي او تر لسو کورګیو پورې لري. وروسته د لاس درغوي په اندازه یوه ښویه تیګه لوشپ (لشپ) په نامه ټاکي او نجوني د لومړي، دوهم او دریم... نوبت د ویشلو لپاره د وچې او لمدې پچه اچوي چې هره نجلۍ خپل وار (نوبت) له ځان سره یادداشت اخلي.

لوبه داسې پیل کیږي چې لومړی باید لشپ په اول کورګي کې واچول شي او د یوې پښې په ټوکه په داسې حال کې چې بله پښه به یې له ځمکې

پاس نیولې وي مخ وړاندې د بل کورګي په خوا ورتیل وهي تر دې چې له ټولو کورګیو څخه یې وباسي او بیا به یې له لرې دوهمې او دریيمې خانې (کورګي) ته وراچوي او حلقه یي لوبه، به تر سره کوي.

لوبغاړې په دغو صورتونو کې سوځي:

۱- که د ښځې په یوځل وهلو لښې وړاندې ولاړ نه شي. نو لوبغاړې سوځي.

۲- که لښې له اصلي کورګي څخه واوړي یا بل کورګي ته او یا هم له جدول څخه بهر ووځي. نو بیا هم لوبغاړې سوځي.

۳- که د لوبغاړې ښځه په کوم خط برابره شي، نو د هغې وار سوځي. که کومې نجلکۍ و کولای شي ټول ټاکلي مقررات بریالي تر سره کړي، بیا نو له کورګیو څخه په پټو سترګو او لښې پر تندي تیریږي په دې صورت کې چې ښځه یې په کرښه برابره نه شي. هر ځل چې نجلکۍ خپله ښځه په کورګي کې ږدي غږ کوي:

«سیا» (سمه ده؟)

نورې لوبغاړې غږ کوي: سېا یعني سمه ده.

کله چې د لوبې د امر حله هم بشپړ شوه، نو د غې لوبغاړې به ګټلې ده او کولای شي یو کورګي مهر کړي، یعنې بوه نښه په کې کیږدي چې د دې په نامه شي.

د جزلوبې یا لښې اچوونې لوبه د نجونو تر ټولو معموله لوبه ده چې د هغوی د ذکاوت، بدني ودې او دقت کولو د ځواک په پراختیا کې مرسته کولای شي.

## پنجاق:

پنجاق دوړو نجونو هغه لوبه ده چې په پينځو دانو وړو تيږو تر سره کيږي. نجونې هڅه کوي ښکلې سپينې او ښويې تيږې (کاڼي) پيدا کړي او څرنګه چې دا لوبه منډې رامنډې نه غواړي، کيداي شي په ژمي کې د ننه په کوټه او په اوړي کې دونو سيورې ته هم تر سره شي.

لو به داسې پيل کيږي چې اول هغه نجلکۍ چې لومړی وارورسيدلای وي. پينځه واړه تيږې پاس اچوی او خپل لاس په چپه اړوي او د پنجنې په شا باندې پاس اچول شوې تيږې قپوي. او بيا يې په رغوي کې رانيسي. هغه تيږې چې په ځمکه رالويږي هغه يوه يوه راټولوي داسې ، چې يوه تيږه پورته اچول کيږي هغه تيږه لا په هوا کې وي، چې له ځمکې څخه يوه تيږه را اوچتيږي او بيا هغه تيږه چې په هوا کې وه، ورسره يوځای په موټي کې نيوله کيږي، چې دې ته «اولبک» وايي.

وروسته بيا تيږې پر ځمکې باندې کوليږي او يوه يوه يې راټوليږي. چې ورته (يوه دانه) وايي بيادوه دوه دانې جوړه پر ځمکې کېښول کيږي، او دوه دوه راپورته کيږی چې ورته (دوه دانې) وايې. همداسې درې په يوه خوا او يوه په بله خوا چې (درې دانې) ورته وايي. او بيا څلور په ځمکې يوه هوا ته پورته اچول چې (څلور دانې) ورته وايي.

تردې وروسته څلور تيږې پر ځمکه داسې کيښول کيږي، لومړی يې يوه دانه راپورته کيږي چې يوه دانه هوا ته پورته اچول کيږي بيا همدا راجګه شوې تيږه له بلې سره بدليږي ، همداسې څلور واړه دانې د يوې بلې دانې په پاس اچولو سره بدليږي، چې ورته «بدلون »وايي، بيا يوه دانه جګه اچوي او په هوا کې يې قپوي چې دې ته اشاره وايي.

بيانو کيڼ لاس پر ځمکه داسې ږدي، چې ګوتې يې پر ځمکه اوسي بيانو د دوو ګوتو تر منځ په خالي ځاي کې يوه تيږه کېښودل کيږي چې په ښي لاس يوه تيږه پورته اچول کيږي او څلور واړه دانې سره راټولېږي ټولې پاس اچول کيږي او بيا هو ځايو يې په موټي کې نيول کيږي. چې دې ته (ګوتمې) ويل کيږي. بل ځل کيڼ لاس داسې پر ځمکې ږدي چې څلور ګوتې سره نښتې او يوه يې بيله نيول کيږي. چې د غره بڼه ځانته غوره کوي، داسې چې د څلورو ګوتو او غټې ګوتې تر منځ خالي ځاى له ځمکې څخه پاس دومره وي چې د لوبو تيږه ورڅخه په آسانۍ سره تيره شي. بيانو په هو ځانګړي حرکت د ښي لاس په ګوتو د کيڼ لاس له شا څخه تيږې تيروي او بيا يوه يوه را پورته کوي او بلې لوبغاړې ته وايي چې يوه په کې خوښه کړي، چې هماغه خوښه کړې تيږه «سپي» بولي بيا نو هره تيږه هوا ته اچوي او له کين لاس څخه يې داسې تيروي چې په «سپي» تماس ونه کړي. کله چې ټولې دانې خلاصې شوې، په پاى کې د سپي وار رارسيږي چې هغه هم په يوه ګوزارد ګوتو له فاصلې څخه تيرېږي.

هرې لوبغاړي چې دا ټولې مرحلې په بريالیتوب سره تر سره کړې، د لوبې ګټونکې ګڼل کيږي.

د دې لوبې ځينې ځانګړي نومونه او اصطلاحات دا دي:

(پشت دست، تاله ګک، دودو قو، سه قو، چهار چهار قو... ژاله ګک اشاره، دسترخوانک، چوچه کش، بندنک و ازک، سګک، څلوردانې، بدلون ګوتمې، غر، اوليک، يکک، دوکک.... پنج کک، دان وازک، دان تلک، بيتروک.) او نور.

ځلورمه برخه:

# اړونه (چیستان) - متلونه، ټوکې او د ماشومانو په روزنه کې د هغو ونډه

ماشومان کله کله داسې بوختیا وې لري چې تر ډېره د ذهني مسابقو بڼه لري او د تفریح او ساعتیرې لپاره پرې بوختېږي. په پښتو کې اړونه هغه ذهني پوښتنې دي چې د معمی ګانو او پوښتنو په شان مطرح کېږي ځینې مهال ماشومان د متلونو په هکله هم خپلو کې سره سبالي کوي او یو بل ته هغه دود سوي متلونه تیروي چې له لویانو یې اوریدلي وي. او کله هم په خپلو کې سره ټوکې کوي او هر څوک یوه یوه داسې ټوګه وایې، چې ټول ماشومان وخندوي. موږ به هڅه وکړو، چې دلته هره برخه بیله بیله معرفي کړو او بیلګې یې ورسره یو ځای راوړو.

## ۱ - اړونه (چیستانونه):

۱ - لکه څرنګه چې وړاندې مو هم ووېل، اړونه هغه مشهورې معماګانې دي چې د یوه ماشوم له خوا د نښو په ویلو سره مطرح کېږي او نور اوریدونکي د نښو له مخې پرې فکر کوي چې د هغه نوم پیدا کړي. اړونو ته په پښتو کې (کیسی) او (ټکونه) هم وایي. په دری کې یې (چیست آن) یا چیستان بولي او په عربي کې ورته (لغز) وایي.

اړونه په منظومه او منثوره توګه دود دي. او شرط يې دا دی چې د غوښتل شوي نوم نښې به په لنډه او ښکاره بڼه ويل کيږي چې نور ماشومان د همدې نښوله مخې غوښتل شوی نوم پيدا کړي، د بېلګې په توګه يو ماشوم وايي:

دا څه شی دی؟

دورځې ګرځي چې د شپې راشي د يوې پيسې ځای ونيسي. نور ماشومان په دې فکر کوي ددې اړ نښې دوه دي، يوه دا چې دورځې ګرځي او بله دا چې د شپې د يوې پيسې ځای نيسي، او هوښيار ماشومان په څو شيبو کې ځواب پيدا کوي او وايي دا (لکړه) ده. ځکه لکړه ټوله ورځ ګرځي او د شپې همدا چې د يواله ته يې ودروي د يوې پيسې ځای نيسي.

اړونه د ماشومانو د ذهني آزموينې، فکري ودې او چاپيريال پيژندنې تر ټولو جدي مرستندويان دي .د يوه اړ د ځواب موندلو لپاره ماشوم په خپل فکر او حافظې تر هغه بريده فشار راوړي چې ځواب و مومي او دا د حافظې د ښه ورزش بللی شو. څرنګه چې اړونه په ټولنې کې د ورځنيو وسايلو په اړه د هر مطرح کيږي او د شفاهي فولکلوريکو معما ګانو حيثيت لري ،د ماشومان په نړۍ ليد پراخولو او دود دستور پيژندلو کې هم مرسته کوي.

د اړونو څو بيلګې چې ځوابونه يې په آخر صفحه کې راغلې دي:

دا څه شي دی؟

۱ - دورځې ګرځي چې د شيبې راشي وازه خوله ونيسي؟

۲ - دا څه شي دی؟

دی حلال دی، خو رنګ يې د مردار دی.

٣- دا څه شی دی:

د ورځې ګرځي ګرځي چې د شپې راشي یوه پولی اغزی په ځان

راواړوي؟

٤- دا څه شی دی:

وړوکی تنورګی له لالوډ ک.

٥- دا څه شي دی:

مړ له قبره پاڅیږي، ژوندی له غاړې ونیسي.

٦- دا څه شی دی:

له پاسه راغلل دوه سیندونه ورته یې ونیول پنځه بیلونه؟

٧- دا څه شی دی:

سورکندوګک، له اوړونه دی ډ ک، په منځ کې یې تمبه ده، زما یوه ګوله

ده؟

٨- دا څه شی دی:

سل خولې لري نه ګیډه نه کولمې لري؟

٩- دا څه شی دی:

دوه ومه په درې شومه، لرې وم را نږدې شومه

دا څه شی دی:

١٠- له خولې غور ځوی توری وینې، چاودلی یې د زړه سردی، عالم

یې مسخر دی.

١١- دا څه شی دی:

یوه لویشت یې قدد ی په آس ز ورور د ی.

١٢- دا څه شی د ی:

په سپین کې تور د ی په تور کې نور د ی سر پری سیور د ی.

١٣- دا څه شی د ی:

شگور له پولوډ ک او څو ک یې نه خوري.

١٤- دا څه شی د ی:

شپږ یې پونډۍ دي لکۍ لري په ملا کې دوه یې دي ښې ژوند لري هوا کې.

١٥- دا څه شی د ی:

وزریې د مرغه سرېې د پیل له رنگه تور د ی کچکو ورباندې سپور د ی.

١٦- دا څه شی د ی:

خوري خوري خو مړیدل نشته، گرځی گرځي لویدل یې نشته.

١٧- دا څه شی د ی:

سور ځنځیر په ځمکه ځیر.

١٨- دا څه شی د ی:

اور وینم او بو کې او به وینم په اور کې.

١٩- دا به څه شی وي:

پاس په ډېر ان کې اور ولگیده ، کوزې د کوهۍ او به ترخې شوې، جوړې خړې لنډ ورې شوې.

٢٠- دا څه شی د ی:

په یوه سوړه کې دود یرش غله نتلي دي، هر چا د سپین سبا غوندې

لیدلي دي.

۲۱ - دا به څه شی وي:

چې ځي خاندي چې بیرته راځي ژاړي.

۲۲ - دا څه شی دی:

لمونځ شته اذان یې نشته.

۲۳ - دا څه شی دی:

د یوې کټوې دوه ډوله مستې په سرو غوښو کې پخې.

۲٤ - دا څه شی دی:

بابا د ننه، ږیره یې بید یا ده، عجبه تماشا ده.

۲۵ - دا څه شی دی:

د سروزرو شپیلۍ ده د وولس بنده، هر بندیې لري څلور څلور پیونده.

۲٦ - دا څه شی دی:

چې ځم را سره ځي، چې کینم را سره کیني، چې ودریږم دریږي هیڅ نه رانه بیلیږي.

۲۷ - دا څه شی دی:

وړوکي هیندوگی، اوږدې یې دی پټکی.

۲۸ - دا څه شی دی:

یو دی خو په سل سترگو ژړا کوي، نه خوراک او نه خندا کوي.

۲۹ - دا څه شی دی:

د هډو کو کوټنۍ ده، په کې ناسته لیونۍ ده.

۳۰- دا څه شی دی:

څلور یې پښې بې شماره یې کولمې.

۳۱- دا څه شی دی:

زرغشي یې خوړلي خو ژوندی دی، دا څرنګه شي دي.

## متلونه:

متلونه د انساني تاریخ او بشري ژوند په اوږدو کې د خلکو د فکري تجربو په نتیجه کې هغه رامنځ ته شوې لنډې جملې (وجیزې) دي چې په لنډو ټکو کې لوی مفهوم بیانوي.

د انسانانو په منځ کې له ډېر پخوا څخه متلونه ویل کیږي، متلونه هغه مهال کاریږي، چې څوک د خبرو پر مهال وغواړي خپله وینا اوریدونکو ته ثابته کړي ځکه نو د استناد لپاره یو متل وایي.

مثلاً که څوک په دې هکله خبرې کوي چې: «په مجلس کې باید هر چاته وار ورکړل شي چې خبرې وکړي او موږ بایدد ټولو حاضرینو خبرې و اورو. ددې لپاره چې هر څوک د خبرکولو حق لري»

نو ددغو جملو ویونکی دغه متل کاروي:

«ژرنده که د پلار ده هم په وار ده»

او ددې متل په اوریدو سره ټول حاضرین د خبرې کوونکي کس وینا مني.

متلونه معمولاً لنډ او آهنګین وي او د ښکلو کلماتو په وسیله مطرح کیږي.

او تر ډېره بریده د سپینږیرو جرګه مارو او پخو کسانو ډېر متلونه

اوېخې خبرې زده وي. خو دا يوازې لويان او سپين ږيري نه دي چې له متلونو څخه کار اخلي، بلکې ماشومان هم د هر ځله د ژمي په شپو کې د تاوخانو په توده هوا کې د متلونو په ويلو سره خپلې حافظې آزمويي، ماشومان گرد سره کيني او هر يو يو متل وايي او له هر چاسره چې متلونو زيرمه ډېره ده يعنې ډېر متلونه يې زده وو د غونډې بريالي گڼل کيږي.

متلونه د ماشومانو لپاره ښه سبق گڼل کيږي. دوی د لويانو او تېرو نسلونو ډېرې خبرې د متلونو له لارې زده کوي او په دې پوهيږي چې دلو يانو له تجربو څخه څرنگه گټه واخلي مثلاً ماشومان کله چې د يو کار په کولو پيل کوي، نو که کوم متل ور په ياد شي کيدای شي، د هغه کار ښه او بد اړخونه وارزوي او بيا وروسته يې تر سره کولو ته ملاوتړي. د بيلگې په توگه يو ماشوم غواړي د خپل پلار ښکاري ټوپک راکوز کړي او ويې گوري نو ناڅاپه يې دا متل ورپه ياديږي:

«چې نه کار هلته دې څه کار»

ځکه نو د پلار ټوپک پريږدي او له ځانه سره فکر کوي چې ربنتيا هم دی له ټوپک سره د لوبو لپاره نه دی جوړ او کيدای شي په ټوپک خپل ځان ژوبل کړي. متلونه ماشومان دې ته چمتو کوي، چې پخې او کاري خبرې زده کړي او يو مهال وکړای شي د لويانو په مجلسونو کې خبرې وکړي، د متلونو کارول د ماشومانو په فصاحت او بلاغت کې ونډه لري، متلونه ماشومان له نويو ژبنيو مفاهيمو، ترکيبونو او جمله جوړونې سره بلدوي. او کولای شي د خپلو خبرو دا ثبات لپاره له متلونو څخه گټه واخلي. همداراز متلونه د ماشوم د جهانبيني (نړۍ ليد) په پراخو لو کې مرسته کوي، ځکه ماشوم د

متلونو له لارې ستر بشري مناسبات په لنډه او آسانه توګه تجربه کولای شي. دلته به د بیلګې په توګه ځو مشهور متلونه راوړو، چې د ماشومانو له خوا د متل ویلو په مجالسو کې ویل کیږي:

١ - بدعادت چې زوروړ شي، عقل مرور شي.

٢ - بدمه را سره کوه، ښه دې نه غواړم.

٣ - بدمه کوه، بد به نه وینې.

٤ - اوزه چې پر با م وخېژي، لیوه ته هم ښکنځل کوي.

٥ - بنیادم بې وزره مرغه دی.

٦ - تشه لاسه، ته مې دښمن یې.

٧ - له یوه لاسه، غږ نه خیږي.

٨ - خپله ژبه هم کلا ده هم بلا.

٩ - که ته وواېې زه یم، او زه ووایم زه یم، نه به ته یې او نه به زه یم. که زه ووایم چې ته یې او ته واوېې چې ته یې، هم به ته یې، هم به زه یم.

١٠ - بې چرګه به هم سبا شي.

١١ - بنده اریان، خدای مهربان.

١٢ - نورې به لا لا وهي، مړی به عبدالله وهي

١٣ - تیر په هېر.

١٤ - تورې چرګې سپینې هګۍ.

١٥ - جنګ سوړ شو، میړی تود شو.

١٦ - څښتن په سپي حکم وکړ، سپي پر لکۍ.

١٧ - ژرنده که د پلار ده هم په وار ده.

۱۸ - جاهل ته دوه ځله سلام اچوه.

۱۹ - خپله لاسه ګله لاسه!

۲۰ - خپله لور تر پردې زویه ښه ده.

۲۱ - اول زده کړه، بیا کوزده کړه.

۲۲ - شغال پر نعمت شکر ایسته، چرګ یې تر خولې ووت.

۲۳ - چرګ چې ځوان شي، پر بام ورو ورو ځي.

۲٤ - د ګوډې لار په ژرنده ده.

۲۵ - څه ژرنده پڅه، څه غنم لامده.

۲٦ - د غله ځای په غره کې نشته.

۲۷ - دایې ډول دایې ژرنده.

۲۸ - له بارانه تښتیدم، له ناوې لاندې مې شپه شوه.

۲۸ - له رویو تښتیدم، په سړي خورو واښتم.

۲۹ - د بل په دستر خوان، سل میلمانه هېڅ دي.

۳۰ - له بې کاره، خدای (ج) بې زاره.

۳۱ - د پشۍ منډه تر کادانې پورې وي.

۳۲ - لاس چې مات شي غاړې ته لوېږي.

۳۳ - له پیښې څخه تیښته نشته.

۳٤ - د تبر خوله لیمڅې نیولې ده.

۳۵ - له تش ټوپکه دوه کسه ډاریږي.

۳٦ - له تخته که ولویږم، له ځمکې خونه لویږم.

۳۷ - له جنګه زه راغلم، غوږې ته کوې.

۳۸- له تشه ډاګه به سیلۍ څه یوسي.

۳۹- د ځواني یوه نیشه وي، هسې نه چې همیشه وي.

۴۰- په ځواني کې بیکاري، د سپینږیر توب خواري ده.

۴۱- له خوارۍ ژرنده ګرځوي. له کبره مزد نه اخلي.

۴۲- د ډنډا و به، چې ډیرې ودریږي، خو ساکیږي.

۴۳- چې ډول ډې تر ښنګ دی، له وهلو یې څه ننګ دي.

۴۴- غر که هر څو مره لوړ وي پر سر لار لري.

۴۵- دروغ د ایمان زوال دي.

۴۶- سپینه اور ول کا، توره وېرول کا.

۴۷- سترګې په بنیونه درنیږي.

۴۸- سترګې له سترګو شرمیږي.

۴۹- سخ د هغه چا، چې غم یې په بل چا.

۵۰- سل دې ومره، د سلو سردې مه مره.

## ټوکې ټکالې:

ټوکې د ماشومانو د مجلسونو یوه په زړه پورې بوختیا ده، کله کله چې څلور پینځه یا زیات ماشومان سره یو ځای شي او په تېره بیا د ژمي په اوږدو شپو کې سره مجلس جوړ کړي، نو په خپلو منځو کې ټوکې وایي،. داسې چې ماشومان ګرد سره کیني او هر یو په خپل وار یوه یوه ټوکه وایي او نور ورته خاندي. په داسې مجلسونو کې که هر چانوې او خوندورې ټوکې وویلې، نو د نورو همزولو شاباسی ګټي.

ټوکې د ماشومانو د طبیعې په ظرافت کې پر اختیار اولي او معمولاً

هغه ځوک چې په خبروکې له ټوکو او طنز ځخه کار اخلي، خبر ې یې جالبه او زړه راکښونکې وي.

طنز او ټوکې په ټولنه کې د انتقاد او پند لپاره ډېرې ګټورې وي. د ګڼو ټوکو کرکټرونه ډېر ساده او یا هم ډېر هوښیاروي او هر کله چې غیر عادي او فوق العاده چاره تر سره کړي نو د خندا وړوي.

هوښیار ماشومان له ټوکه ځخه د از ده کوي، چې ځنګه ځان د خلکو له خندا ځخه وژغوري. دروغ ونه وایي، لا یې ونه وهي او د هوښیارانو په شان خپلې چارې پر مخ یوسي.

له بلې خوا کله چې ماشومان په یوه مجلس کې ټوکه وایي او نور خندوي، نو د همزولو او یالو یانو له خوا هڅول کیږي .له دې امله ماشوم جرئت پیدا کوي او دوې احساس کوي، چې نور د ده خبرې اوري او ورته په زړه پورې دي، ټوکې ویل د ماشوم ظریف ذوق روزي، او په فصاحت او بلاغت کې یې مرسته کوي.

ټوکې ویل او ټوکې اوریدل ماشوم له یوازیتوب، رواني فشارونو او انزوا ځخه ساتي. ماشوم د خوشالۍ احساس کوي او هر کله چې ماشوم له خپګان ځخه لرې وي او وخت یې په خندا او خوشالۍ تېرشي، ښه و ده کوي او راتلونکی شخصیت یې سالم او بې عیبه وي. د ماشومانو ځینې اروا پوهان کله چې په رواني خپګان (دیپریشن) اخته ماشومان تر در ملنې لاندې نیسي، نو ګوري چې داسې ماشومان منزوي (ګوشه ګیر) بې جرئته، ډارن او تل خپه وي. ددې لپاره چې داسې ماشومان ښه شي، نو اروا پوهان یې له کورنۍ او همزولو ځخه هیله کوي، چې دداسې ماشوم د خوشالۍ او

هوسا ، ساتلو لپاره له هغه سره مجلس وکړي، ټوکې ورته ووايي ، ويې خندوي او دی په خپله وهڅوی چې ټوکې ټکالې زده کړي او بيا يې همزولوته واوروي. نو له دې هر څه نه ښکاري چې ټوکې ټکالې د ماشومانو په خوشاله ساتلو کې ډېره ونډه لري.

د ماشومانو لپاره بايد سالمې، په زړه پورې او ساده ټوکې وويل شي چې هم يې وخندوي او هم ورڅخه زده کړه وکړي او پند واخلي .

موږ به دلته د ماشومانو لپاره د ټوکو څو بيلګې راوړو :

## غل او غريب:

وايي چې د يوه غريب سړي کورته د شپې غل ورغی ، کور به پرې راويښ شو ، ويې ليدل چې غل دی نوپرې غږ يې وکړ: چې موږ په دې کور کې دورځې څه نه شو پيدا کولای ته به د شپې په تياره کې څه پيدا کړې ؟

* * *

## ماهم نه ده ليدلې:

يو سړی چاته په تعجب سره وويل چې تا يو خروار هندوانه ليدلې ده ؟

هغه ورته وويل چې نه!

ده ورته وويل: ما هم نه ده ليدلې.

* * *

## روژه که زردالو:

يو سړي په روژه کې زردالو خوړل ، بل ورته وويل: ولې روژه خورې ؟ ده ورته وويل . مګر ته ړوند يې نه وينې چې زه روژه نه خورم ،بلکې زرد آلو خورم.

***

## سوالگر او سگرټ:

یوه سوالگر له یوه لاروي څخه د پیسو غوښتنه وکړه. لاروي ورته وویل پیسې نه لرم مگر آیا سگرټ څکوې؟

سوالگر ورته وویل: هو، څکوم یې.

لاروي ورته وویل: نو یو سگرټ خوراکړه چې ویې څکم.

***

## لاپې:

یو سړي لاپې وهلې چې زه د نړۍ ټول حیوانات پېژندني او د حیواناتو متخصص یم. نو بل سړي ورته وویل: چې دومره پوه سړی یې نو راته ووایه چې خر څه ډول حیوان دی؟

لاپوک ورته وویل:

خر خو داسې حیوان دی چې د اوښ په څېر دوه غټ غټ ښکرونه لري.

***

## او به هم راوړه:

یو ماشوم ژړل او له خپلې مور نه یې اوبه غوښتلې. مورېې چې داوړو په لمدولو بوخته وه، په قهر یې وویل: غلی شه کنه اوس به درسټې لرگی راوړم او ښه به دې ووهم.

ماشوم ورته وویل خیر دی مورې چې لرگی راوړې نو او به هم درسره راوړه.

***

## چرګ:

یو سړی د یو و یالې ترځنګ تېریده، ګوري چې یو هلک خپل چرګ په ویاله کې وینځي. هغه سړی چې بېرته له بلې خوا راوګرځیده، ګوري چې د هلک چرګ مړ دی او داورته ژاړي. سړي پوښتنه وکړه: واکم عقله! چرګ چاوینځلی چې تاوینځه په لوی لاس دې مړ کړ.

هلک وویل: په وینځلو مړ نشو په نښنیځلو کې مړ شو.

* * *

## پیل او چرنګښه:

یو پیل او چونګښه سره ملګري شول او پرېکړه یې وکړه چې له کوم باغ څخه منې راغلا کړي. کله چې باغ ته ننوتل، پیل چونګښې ته وویل زما پر ډډه وخیژه او منې راوشکوه. چونګښې ورته وویل، داکار زه نه شم کولای راځه او ته زما په ملا وخیژه او منې راوشکوه. پېل ورسره ومنله او کله یې چې د چونګښې په ملا پښه کیښوده د چونګښې سترګې یې له سر څخه راووتې، پیل په ګیله ورته وویل:

هم منې درته راشکوم او هم سترګې را ته رډې رډې کوې؟

* * *

## غوایان:

یو لیوني له بل څخه وپوښتل: که سیند اور واخلي نو کبان چیرته تښتي؟

بل لیوني ورته وویل: هې ساده، ښکاره خبره ده چې ونو ته خیژي.

لومړي لیوني ورته وویل: ساده خو ته یې، کبان خو څه غوایان نه دي چې ونو ته وخیژي.

***

د ښوونکي پوښتنې:

په یوه ښونځي کې یو ښوونکی نوی مقرر شوی و، په لومړۍ ورځ کله، چې د ولسم ټولګي ته ورغی؛ له یوه زده کونکي څخه یې پوښتنه وکړه:

- هلکه ته ووایه چې د سومنات بت چامات کړ؟

هلک حیران شو، چې څه ووایي، ځواب ورکړ:

استاذه: زه خو پرون هم نه وم راغلی او هغه بل پرون هم نه وم راغلی والله که مامات کړې وي.

ښوونکی غوسه شو. چې دومره ټمبل هلک څنګه په دولسم ټولګي کې درس وايي. نو مخامخ یې د معارف وزیر ته تیلفون وکړ او تر روغبړ وروسته یې ورته وویل:

صاحبه زه د پلانکي ښوونځي په دولسم ټولګي کې له یوه زده کوونکي څخه پوښتنه کوم چې د سومنات بت چامات کړي، دی راته وايي: ما نه دی مات کړی ځکه زه پرون او تېره ورځ نه وم راغلي. زه نه پوهیږم چې دا څنګه تر دولسم ټولګي را رسېدلی دی...

وزیر په غوسه شو او ورته یې وویل:

ښاغلی ښونکی صاحب! زه نور نه پوهیږم بت چې هر چا مات کړی وی تاوان به یې ته ورکوې.

***

دوه او دوه څوکیږي:

یو سړی ډېر زیات وږی شوی و، په دغې شیبې کې بل سړي ورڅخه

پوښتنه وکړه چې کاکا دوه او دوه څو کيږي ، ده ورته بې له ځنډه ځواب ورکړ:

دوه او دوه څلور ډوډۍ کيږي.

***

## د سګرټو کموالی:

د يوه سړي په خوله کې يو ډېر اوږد سګرټ و؛ چې اوږدوالی يې له يوه متره هم اوښته . بل سړي ورته وويل: چې ماما دا دومره اوږد سګرټ ولې څکوې؟ ده ورته په ځواب کې وويل: دا ځکه چې ډاکټر ماته ويلي چې دورځې يوازې يو سګرټ څکوه!

***

## دوه ساده ګان:

يوه ساده له بل څخه پوښتنه وکړه: ته په کومه ورځ پيدا شوي يې ده ورته وويل د يکشنبې په ورځ ، او ته په کوم پيدا شوی يې؟

لومړنی ساده ورته وويل: د جمعې په ورځ.

دوهم ساده ورپورې وخندل چې دروغجنه، ولې دروغ وايې د جمعې په ورځ خو رخصتي وي.

پینځمه برخه:

# د ماشومانو بوختیاوې (سرګرمۍ)

د ماشومانو لپاره ځینې داسې بوختیاوې هم شته چې کولای شي هم د ساعتیري اولوبو په شان هغوی ته خوندورې وي، او هم د پوهې او زده کړې لپاره لومړني لوستونه وي.

هغه مهال چې ماشومان له کاغذ، قلم، کتاب او مجلې سره آشنا کیږي نو هڅه کوي څه زده کړي خو که مخامخ په لوستلو او لیکلو پیل وکړي. دا چاره به څه نا څه ستونزې ولري. له همدې ځایه ده چې د ښوونې اوروزنې ګڼ کارپوهان وړاندیز کوي، چې تر ښوونځي مخکې باید ماشومان د زده کړې یوه بله ابتدایي مرحله (پړاو) تېر کړي. د زده کړې په دې پړاو کې ماشومان په ساده علمي تجربو، رسامۍ، د جدولونو پر حل، د حساب د ساده ځوابونو په موندلو او نورو داسې په زړه پورې بوختیا وو لاس پورې کوي. ځینې شعرونه له یاده کوي او کله کله معما ګانو ته ځوابونه وايي.

د ماشومانو داسې بوختیا وې په لاندنیو برخو وېشلای شو:

## د متقاطع کلیمو جدولونه:

د ماشومانو لپاره د متقاطع کلیمو جدولونه د ساده معماګانو له مخې د نومونو او کلماتو پیدا کول دي، چې د ورکړل شوي جدول په ځانګړو خانو کې باید ولیکل شي.

یو شمېر مجلې چې د ماشومانو لپاره خپرېږي د خپلو سرګرمیو په پاڼوکې داسې جدولونه خپروي چې که د ماشومانو له خوا حل شي، نو د مجلې له خوا ګټونکي حل کوونکي ته جایزه هم ورکول کېږي.

دې ډول جدولونو ته ځکه د متقاطع کلیمو جدولونه وایي، چې په هغه کې د کلیمو حرفونه یو له بله سره داسې واقع شي چې له دوو خوا ویې په لوستلو سره دیوې یوې کلیمې اجزا جوړوي.

له ښي لاس چپ لاس ته د کلیمو کتارته (افقي) ردیف وایي او له پاسه کوز لوري ته د کلیمو کتار (عمودي) ردیف بولي. ټول ردیفونه د جدل په سراو ښي اړخ کې د ورکړل شویو شمېر وله مخې پېژندل کېږي.

ځینې مهال د کلیمو د بیلو لو لپاره په جدول کې یو شمېر تورې خانې هم شاملېږي چې په هغو کې بیا توري نه لیکل کېږي.

د متقاطع کلیمو د جدولو د حل کولو لپاره باید له کلیماتو سره لوبې وشي او هغه معماګانې چې په لومړي سرکې سړی حیرانوي خو که ښه ورته ځیرشي، څو مماثلې کلیمې وارزوي ،نو کولای شي د نظر وړ کلیمه یا نوم پیدا کړي، کله کله د کلیمو سر چپه بڼه غوښتل کېږي .او ماشوم باید وکړاي شي هغه و مومي مثلاً غوښتل کېږي چې (سرچپه لوبیا) نو ماشوم د غه نوم سر چپه کوي او لیکي (ایبول) یا هم د کلیماتو نوم په بله ژبه غوښتل کېږي، لکه (په عربي ځمکه) چې ماشوم به (ارض) لیکي یا (په دري وری) چې ماشوم یې (ګوسفند) لیکي. په ساده شکل معما داسې مطرح کېږي:

۱ - د افغانستان یو ختیځ ولایت.

ماشوم چې وګوري په جدول کې (۷) خانې تشې دي، نو د افغانستان د ختیځو ولایتونو، نومونه له ځان سره یادوي او ګوري چې کوم یو یې (۷) توري لري او په جدول کې مناسب ځای موندلای شي نو په دې توګه به د (ننګرهار) نوم پیدا کړای شي.

د متقاطع کلماتو د جدولو نو حل د ماشومانو په ځېر کتیا او فکري وده کې مرسته کوي. ماشومان کولای شي له ګڼو کلماتو سره بلد شي او ډېر نومونه زده کړي. په دې یوه شي چې کلیمات څه ډول له حرفونو څخه جوړیږي. د داسې جدولونو د حل کولو لپاره هڅه کول، د ماشوم معلومات زیاتوي. ځکه د هرې کلیمې په باره کې باید آفاقي پوهه ولري. د (ننګرهار) پورتنۍ بېلګه که وګورو وینو چې ماشوم د همدې نامه په پیدا کولو کې څو خبرې زده کوي. لومړی باید د افغانستان نقشه وګوري، بیا ختیځ لورې وپېژني، بیا ځان خبر کړي چې په ختیځ لوري کې کوم ولایتونه شامل دي، څه ډول نومونه لري، او دا نومونه له څو تورو څخه جوړ شوي دي. په دې توګه وینو چې که ماشوم ټول جدول حل کوي، د څومره زیاتو کلیماتو په هکله معلومات تر لاسه کولای شي.

## ځینې ساده او علمي تجربې:

هر ماشوم له خپل چاپېریال او د لیدوړ طبیعت څخه زده کړه کوي. کله چې ماشوم د خپلو شاوخوا شیزونو (اشیاوو) په هکله فکر کوي، نو هیله لري د هر شیز په هکله خپل معلومات بشپړ کړي، که د ماشوم په لاس کې ډبره وي او هغه له لاسه وغورځوي، نو پوښتنه ورته پیدا کیږي چې ولې ډبره

د ځمکې خواته لوېږي او که څوک هم دومره ورته ووايي چې ځمکه د جذب قوه لري نو ددې د لوید لو په دلیل پوهیدای شي.

د طبیعت، فزیکي پېښو او یو شمېر علمي تجربو په اړه د ماشوم ذهن خورا احساس وي او هر څه چې په ماشو متوب کې زده کړي د ژوند تر پایه یې په یاد وي. کله داسې هم پېښېږي چې ماشوم له ډېرې ساده علمي تجربې څخه یو څه پر مختللیو تجربو ته ورسېږي او ورو ورو لوی علمي حقایق زده کړي. د ژوند په لومړنیو کلونو کې د ماشوم فکر له ګڼو پوښتنو څخه ډک وي، مثلاً سپوږمۍ څنګه لویه او وړه کیږي؟ ستوري ولې ځمکې ته نه رالویږي، غرونه څنګه را منځ ته کیږي، وریځ څنګه جوړیږی او داسې نورې پوښتنې. د پوښتنو مطرح کول دا معنا لري چې ماشوم غواړي په ځینو طبیعي حقایقو وپوهیږي. له همدې امله باید د ماشوم د پوهولو لپاره له هغه سره مرسته وشي چې په خپلو منځو نو کې ځینې ساده علمي تجربې عملي کړي. داسې علمي تجربې د ماشومانو لپاره هم په زړه پورې وي او هم دزده کړې وړ. خو اساسي شرط دادی، چې له هرې علمي تجربې سره دهغې د پېښیدو دلایل هم ذکر شي. او دا چې یوه پروسه څه ډول بشپړیږي او ولې سرته رسیږي باید د ماشوم پوښتنو ته مقنع ځوابونه ورکړل شي. راځی د همداسې علمی تجربو څو ساده بیلګې دلته راوړو:

## هوا وزن لري:

ماشوم څنګه پوهولای شو چې هوا وجود لري، که څه هم چې موږ یې نه شو لیدلای خو هوا شته او له مالیکولو نو څخه جوړه ده، وزن او کثافت لري. خو دا چې څنګه یې ثابتو وو، یوه ساده علمي تجربه تر سره کولای شو.

لومړي يو خط کش را اخلو او په سم نيمايي کې ورپورې يو تار تړو، او په ديواله کې يې له يوه ميخ څخه رازړوو. وروسته يې په دوو سرونو باندې دوه داسې پوقانې تړو چې په يوه اندازه هوا ورکړ شوې وي. دا خط کش به د ترازو (تلې) بڼه خپله کړي او و به گورو چې خط کش مستقيمه بڼه لري. يعنې دا چې د دواړو پوقانو وزن مساوي دی څو که له دواړو پوقانو څخه يوه يې د ستنې په مرسته سوری کړو او هوا ترې وباسو، سمدلاسه به گورو چې له هوا څخه ډکه پوقانه لاندې راځي او د خط کش هغه سرچې تشه پوقانه پورې تړلې ده پاس پاتې کيږي او دا ترې ثابتيږي چې هوا وزن لري، د دغې تجربې د لارو ښانتيا لپاره کولای شو هغه په لاندنيو دوه انځورونو کې وگورو:




(۳۰) شکل

## بریښنا څنګه تر لاسه کیږي ؟ :

په طبیعت کې ځینې داسې شیزونه شته چې که له خپل مخالف شیز سره وسولول شي بریښنا بودوي. که دوه شیزونه سره وسولیږي، د حرکت او تصادم له امله ددواړو اجسامو الکترونونه برقي کیږي .ددې تجربې تر سره کولو لپاره کولای شي له یوه قلم او د خپل سر له ویښتو څخه کار واخلي، قلم د خپل سر په ویښتو دېوې دقیقې لپاره وموښئ او بیا یې د میز په سر پرتو کوچنیو ټوټه شویو کاغذنوته ورنژدې کړئ په حیرانتیا سره به وګورئ چې ستاسو قلم دغه کوچني کاغذونه راپورته کوي او په خپله بدني یې نښلوي، دا په حقیقت کې د قلم برقي کیدل دي او همدا د بریښنا انرژی ده چې کوچني کاغذونه راجذبوي. دا تجربه په شکل کې وګورئ:



(۱) شکل

## د ځیزونو (اجسامو) وزن په اوبو کې کمیږي:

هر جسم چې په آزاده هوا کې وزن کړئ، یو ټاکلی وزن لري. خو څرنګه چې د اوبو کثافت نظر آزادې هوا ته ډېر دي په اوبو کې د هماغه ځیز یا جسم وزن لږوي. دا تجربه کولای شئ د یوه لرګي یوه سطل اوبو او دوه یو کیلو یي ډیرو په وسیله ترسره کړئ. لومړی د یو لرګی یا خط کش په دواړو سرونو پورې یو، یو کیلویي وزن وتړئ. که د لرګي یا خط کش په سم نیمايي کې له تړلي تار څخه یې راوځړند کړئ، خط کش به مستقیم ودریږي خو په دوهم حالت کې یوه وزنه (۱-کیلویي) د اوبو په سطل کې ډوبه کړئ، و به ګورئ چې هغه بل یو کیلویي د ځمکې خواته راټیټیږي له دې څخه ښکاري چې نظر هوا ته په اوبو کې وزن کمیږي.




(۲) شکل

**نتیجه (پایله) او وړاندیزونه:**

د ماشو متوب دوره په ژوند کې د شخصیت جوړونې بنسټیزه دوره ده. پیدا ګو ژیستا نو او اروا پوهانو په دغې دوره کې ګڼ داسې اصول، اولارې چارې په ګوته کړې دي چې د هغو په مرسته د یوه عالي او سالم شخصیت جوړولو لپاره لاره هوارېږي، چې کنې روزنیزې بوختیاوې په دغو لارو چارو کې شاملې دي.

د تاریخ پوهانو په نظر بشریت د پیدایښت او ودې په لومړنیو پړاونو کې اساطیر او افسانې له ځانه سره درلودې. ما نیا دا چې بشریت په خپل ماشومتوب کې له کیسو او اساطیرو سره مینه درلوده. ځینې په دې ګروهه دي چې په پخوا زمانو کې (زرګونه کاله پخوا) اساطیر او افسانې له دېن، پوهې، تاریخ او فلسفې سره ګډې وې او له دې هر څه څخه دا ځرګندیږي چې افسانې او کیسې (میتولوژي) د انسان په تاریخي وده کې څومره اهمیت لري. له همدې ځایه ده چې کیسې، نورې اذبي بوختیاوې لکه شعرونه او ترانې متلونه، اړونه، طنز او ټوکې د ماشومانو په وده او شخصیت جوړونه کې څومره اغیزې لري. ماشومان په هر بوختیا کې د خپل شخصیت د بشپړولو لپاره هڅې کوي او له رواني پلوه پر مختګ ته مخیږي،، تجربه حاصلوي او په راتلونکي ژوند کې ور څخه د ټولنې فعاله او متجرب شخصیت جوړیږي. نو د کیسو، ټرانو، لوبو او فولکلوري ارزښتونو په نظر کې نیول، د ماشومانو د کورنیو، مربیانو (روزونکو) او ښوونکو لپاره خورا مهم او د پام وړ دي. نو د همدې اړتیا له مخې بنایي دوړاندیزونو په توګه دلته دا یادونې ذکر کړو او د افغانستان د ښېرازه راتلونکي او ددغه

هیواد د ماشومانو د روښانه سبا اوښې روزنې لپاره باید، د ښونځیو او زده کړو تر څنگ یو شمیر مرستیالې چارې هم عملي کړای شي:

۱ - د ماشومانو لپاره د کیسو، افسانو او مصور و داستانونو د چاپ او خپراوي لپاره دې لاره هواره شي. همداراز د ترانواو شعرونو مجموعې دې چاپ شي. .

۲ - د ماشومانو د سالمو لوبو او بوختیاوو پارکونه او لوبځایونه جوړ کړای شي، چې ماشومان هلته په سالمو او روزنیزو لوبو بوخت وي.

۳ - د ماشومانو د ذهني ودې او روزنې لپاره باید د ذهني مسابقو ځانگړي پروگرامونه جوړ شي او په هغو کې د معماگانو، علمي پوښتنو او تجربو په طرحه کولو سره، د ماشومانو په ښوونه او روزنه کې عملي گامونه اوچت شي.

٤ - د ماشومانو لپاره د تفریحي پروگرامونو او کنسرتونو جوړول، کولای شي د کوچنیانو په روانې آرامۍ کې مرسته وکړي.

٥ - د ماشوم د ادبیاتو لپاره دې جلا انستیتوتونه، او علمي ځانگې جوړې شي چې وکړای شي د هغوی لپاره د آثارو په راټولو او خپرولو کې مرسته وکړي.

## د اړونې (چیستانونو) ځوابونه:

۱- بوټ
۲- شګوړ
۳- سترګه
٤- انار
۵- تلک
٦- پوزه
۷- سنځله
۸- غلبیل
۹- سپین ږیری
۱۰- قلم
۱۱- میخ تبیله
۱۲- سترګې
۱۳- د آسمان ستورې
۱٤- ترازو
۱۵- ګونګټې
۱٦- ژرنده
۱۷- د نداسه
۱۸- ګل او شبنم
۱۹ چلم
۲۰- غاښونه
۲۱- د ځاه ډولچه
۲۲- د جنازې لمونځ
۲۳- هګۍ
۲٤- جوارو وړی
۲۵- کال، میاشت او اونۍ
۲٦- سیورې
۲۷- ستن او تار
۲۸- چلو صاف
۲۹- خوله، غاښونه او ژبه
۳۰- کټ
۳۱- شکوړ



**سرچینې او اخځونه:**


۱- پښتني فولکلور، د ځولیکوالو ګډ اثر، د افغانستان د علومو اکاډمي، کابل، ۱۳٦۵ چاپ.

۲- پښتو قصې. صدیق الله (ریښتین) او غلام رحمن جرار، پښتو ټولنه، کابل ۱۳۳۱ لمریز کال چاپ

۳- پښتو متلونه، د محمد دین ژواک په اهتمام، پښتو ټولنه، کابل ۱۳٤٤ لمریز کال چاپ.

٤- هیله مجله، دوهم کال، دریيمه ګڼه، پېښور.

۵- پټه خزانه، محمد هوتک، د پوهنې وزارت، کابل، ۱۳۳۹ کال چاپ.

٦- روانشناسي کودک، د ځولیکوالو ګډ اثر، ایران (تهران، ۱۳۵٦ لمریز کال چاپ.

۷- د کمکیانو انیس، د ۱۳۵۵ کال کلیکسیون.

۸- د لیکوال راډیویي آرشیف.

# د اریک د ګرځنده کتابتونونو د اداري خپاره شوي کتابونه

١- د افغانستان عمومي جغرافیه
٢- جغرافیای عمومی افغانستان
٣- د افغانستان تاریخي ودانۍ
٤- بناهای تاریخی افغانستان
٥- د افغانستان محلي خواړه
٦- ورزشهای محلی افغانستان
٧- سپینه کوتره
٨- کمان طلایی
٩- زده کړو ته چي ورزده کړو
١٠- بیا موزیم تا بیاموزانیم
١١- په افغانستان کې د چاپیریال ساتنه
١٢- حفاظت محیط زیست در افغانستان
١٣- په افغانستان کې د بوزغلیو او باغونو جوړونه او روزنه
١٤- تربیه و تهیه، بزق و باغها در افغانستان
١٥- د تمدن سوغات
١٦- ارمغان تمدن
١٧- زلزله در افغانستان
١٨- په افغانستان کې زلزلې
١٩- معیوبین و جامعه
٢٠- معیوبین او ټولنه
٢١- د افغانستان لنډکی تاریخ
٢٢- تاریخ فشرده، افغانستان
٢٣- د چرګانو ساتنه او پالنه
٢٤- مرغداری
٢٥- دنیای کودک
٢٦- د ماشوم نړۍ
٢٧- نګاهی بر اوضاع اقتصادی افغانستان
٢٨- د افغانستان اقتصادي حالت ته یوه کتنه
٢٩- د شاتو مچیو روزنه
٣٠- زنبورداری
٣١- د افغانستان مشاهیر
٣٢- مشاهیر افغانستان
٣٣- د افغانستان کلک پوستي میوې
٣٤- میوه های سخت پوست افغانستان
٣٥- جغرافیاي ولایات افغانستان
٣٦- د افغانستان د ولایتونو جغرافیه
٣٧- تکنالوژی بایوګاز
٣٨- د بایوګاز تکنالوژي
٣٩- پرخوری یا خود خوري
٤٠- ډیر خوراکي
٤١- بازی های عامیانه اطفال
٤٢- د ماشومانو ولسي لوبې
٤٣- ٤٤- لنډۍ ها
٤٥- رهنمای تشخیص وتداوی امراض چشم، ګوش، ګلو وبینی
٤٦- د سترګو، غوږ، ستوني او پزې ناروغیو د تشخیص او درملنې لارښود.
٤٧- سرګرمی با تجربه های علمی
٤٨- په عملي تجربو سره وخت تیرول
٤٩- په افغانستان کې کاني زیرمې
٥٠- ذخایر معدنی افغانستان
٥١- اساسات ماهی پروری
٥٢- د کبانو د روزلو لارښوونې
٥٣- اوبه د ژوند سرچینه
٥٤- آب سر چشمه، حیات
٥٥- تدبیر منزل
٥٦- د کور سمبالښت
٥٧- سبزی ها
٥٨- سابه
٥٩- د افغانستان مشاهیر (دویم ټوک)
٦٠- مشاهیر افغانستان (جلد دوم)
٦١- توصیه های مفید برای انکشاف باغداری در افغانستان
٦٢- په افغانستان کې د باغونو د پرمختګ په هکله ګټورې لارښوونې
٦٣- شاهراه های افغانستان
٦٤- د افغانستان لوي لارې
٦٥- ورزش
٦٦- ورزش (پښتو)
٦٧- تاریخ مختصر وسایل اطلاعات جمعی...
٦٨- په افغانستان کې د ډله ایزو اړیکو وسایلو...
٦٩- سیمای محیط زیست افغانستان
٧٠- د افغانستان د چاپیریال بڼه
٧١- اقتصاد
٧٢- اقتصاد (پښتو)
٧٣- تخنیک ابتدایی رادیو
٧٤- د رادیو لومړني تخنیک
٧٥- د افغانستان مشاهیر (دریم ټوک)
٧٦- مشاهیر افغانستان (جلد سوم)
٧٧- دانستنی های مالداری و وترنری
٧٨- د وترنرۍ او مالداری په هکله لارښوونې
٧٩- صنایع دستی افغانستان
٨٠- د افغانستان لاسي صنایع
٨١- هرات در دوره، تیموری ها
٨٢- هرات د تیموریانو په دوره کې
٨٣- نباتات صنعتی
٨٤- صنعتي بوټي
٨٥- جهان نما
٨٦- نړۍ ښود
٨٧- ګلدسته، اطفال
٨٨- د ماشومانو ګل غوټچه
٨٩- آب های تحت الارضی و معدنی افغانستان
٩٠- د افغانستان ترځمکې لاندې او کاني اوبه
٩١- روغه ټولنه
٩٢- جامعه، صحتمند
٩٣- شهر کابل در طی قرون
٩٤- کابل د پیړیو په اوږدو کې
٩٥- اطلس ولایات افغانستان
٩٦- د افغانستان د ولایتونو اطلس
٩٧- تجارت در افغانستان
٩٨- په افغانستان کې سوداګري
٩٩- سیری در امواج موسیقی
١٠٠- د موسیقۍ په څپو کې ...
١٠١- کمپیوتر (پښتو کتاب)
١٠٢- کمپیوتر (ترجمه دری)
١٠٣- باستانشناسی در افغانستان
١٠٤- لرغونپیژندنه په افغانستان کې
١٠٥- ادب پوهنه
١٠٦- ادب شناسی
١٠٧- اساسات تولید نباتات زراعتی در افغانستان
١٠٨- په افغانستان کې د کرنیزو نباتاتو د تولید ...
١٠٩- افسانه ها و سرګرمی ها برای اطفال



عبدالغفور "ليوال" د مولوی علی محمد خان حسين خيل زوی، په ۱۳۵۲ لمريز کال په کابل کې زيږيدلی دی.

## زده کړې:

لومړی- منځنی.اوثانوي د کابل په اعتبارخان ليسه کې

## لوړې زده کړې:

د کابل پوهنتون دژبو او ادبياتود پوهنځی، د پښتو څانگه.

## دندې:

د کابل پوهنتون د فرهنگی شورا مرستيال، د هنداره خپرونی خبريال، د کابل راډيو تلويزيون د هنر او ادبياتو د اداری ليکوال.

د افغانستان د مرستو د مرکز (CCA) کارکوونکی، په افغانستان کې د جگړې او سـولې په هکله د رپوټ ورکولو د نړيوال انستيتوت

مسوول، په کابل کې د آزادی-راډيو د پښتو سرويس کتونکی او خبريال.

## آثار:

۱- مخه ښه او دوه منظومې، ۱۳۷۶ لمريز کال، چاپ.

۲- ژړا، اور، مينه (د شعرونو مجموعه) ، ۱۳۷۷ لمريز کال، چاپ.

۳- هوسی.(منظومه)، ۱۳۷۸ لمريز کال ،چاپ.

۴- ارشاک او اوشاس (منظومه)، ۱۳۸۰ لمريز کال، چاپ.

۵- د نيلوفرو کيسې (راټولونه) ۱۳۸۱ لمريز کال، چاپ.

۶- د وريښمو تول (د پښتو شعر د اوسمهالي بهير کره کتنه)، ۱۳۸۱ لمريز کال، چاپ.

## ناچاپ آثار:

۱- د ژبښوونې آرونه (د ژبې د زده کړې اروا پوهنه)

۲- د تراوښځي (له اسد آسمايي سره گډه اثر)

۳- د علمی مقالو دوه مجموعې

۴- د شعرونو دوه مجموعې





د اريک د گرځنده کتابتونونو د خپرونو لړۍ
پرله پسې نومره ۱۱۰